# مهدي

## څوک، چیرته او کله!؟

لیکوال

مفتي محمود دیوبندي

ژباړن

شاهد الله عمران




## کتاب پېژندنه:


| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | :: | مهدي خوک، چېرته او کله!! |
| ليکوال | :: | مفتي محمود ديوبندي |
| ژباړن | :: | شاهد الله عمران |
| خپرندوی | :: | مسلم خپرندویه ټولنه - جلال اباد |
| چاپ وار | :: | لومړی |
| کمپوز | :: | خپله ژباړن |
| ډيزاين | :: | مسلم ګرافيکس |
| چاپ شمېر | :: | ۱۱۰۰ |
| چاپ لړ | :: | ۲۹۸ |
| چاپ کال | :: | ۱۳۹۷ هــ ش |




د ترلاسه کېدو ځای

**مسلم کتاب پلورنځی**

پته: اسحاقزی مارکېټ، لاندینی پوړ، جلال اباد ښار، افغانستان

اړيکشمېرې: ۰۷۹۳۰۷۳۰۸۰ - ۰۷۷۶۰۰۶٤۱٦

برېښنا ليک: muslim-pub@yahoo.com

# د موضوعاتو لړلیک

موضوع | مخ

## لومړی فصل

## قیامت او د قیامت نښې

## دويم فصل
## د مهدي حالات

## دریم فصل

## خلورم فصل

## د مهدي د راوتلو څو مشهورې علامې او د هغې تحقیق

# لومړی فصل

## قيامت او د قيامت نښې

دا حقيقت دی چې د قيامت ورځ راتلونکې ده، د نړۍ دېر دينونه په يو نه يو شکل د قيامت منلو ته تيار دي. د قيامت منل د مسلمانانو له اساسي عقيدې څخه ګڼل کېږي، خو پوښتنه دا ده چې قيامت به کله واقع کېږي؟ ځواب دا دی چې د دې علم يوازې له الله تعالی سره دی، نور پرې هېڅوک نه خبر دي او نه پوهېږي. الله تعالی په سورت لقمان کې د دې داسې يادونه کړې ده:

﴿ إِنَّ اللَّهَ عِندَهُۥ عِلْمُ السَّاعَةِ ﴾ (لقمان: ۳۴)

ژباړه: بې شکه د هغه ساعت (قيامت) علم له الله تعالی سره دی.

په بل ځای کې داسې فرمايي:

﴿ يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ السَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسَىٰهَا ۖ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ رَبِّي ۖ لَا يُجَلِّيهَا لِوَقْتِهَآ إِلَّا هُوَ ﴾ (اعراف: ۱۸۷)

ژباړه: (ای محمده!) دوی له تا څخه د قيامت پوښتنه کوي چې هغه به څه وخت نازلېږي؟ ووايه: ((د هغه معلومات زما رب ته دی، هماغه به يې په خپل وخت راڅرګند کړي.

يعنې تاکلی وخت لري، خو دغه تاکلی وخت يوازې الله تعالی ته معلوم دی، بل پرې هېڅوک خبر نه دي.

## د قيامت په هكله د مكې د قريشو پوښتنه

د قيامت د راتگ په اړه د مكې قريشو هم له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه كړې ده، خو هر ځل له نبوي دربار څخه ورته دا ځواب وركړل شوى: «د دې علم يوازې زما له رب سره دى او بس، د دې علم نه كوم پيغمبر ته وركړل شوى، نه ملايكې ته». د دې خبرې وضاحت حافظ ابن كثير رحمه الله په خپل تفسير كې داسې كړى دى:

أَيْ: لَيْسَ عِلْمُهَا إِلَيْكَ وَلَا إِلَى أَحَدٍ مِنَ الْخَلْقِ، بَلْ مَردها ومَرجعها إِلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ، فَهُوَ الَّذِي يَعْلَمُ وَقْتَهَا عَلَى التَّعْيِينِ.[1]

ژباړه: د قيامت علم نه له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره شته او نه په مخلوق كې له بل چا سره، د دې علم يوازې له الله تعالى سره دى او هغه يې تاكلى وخت پېژني.

---

١- تفسير ابن كثير: ٤/ ٢٢٥.

## قيامت د احاديثو په رڼا کې

رسول الله صلی الله علیه وسلم په يو حديث کې فرمايي:

عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لاَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا ، فَإِذَا طَلَعَتْ فَرَآهَا النَّاسُ آمَنُوْا أَجْمَعُوْنَ ، فَذٰلِكَ حِيْنَ: لاَ يَنْفَعُ نَفْسًا إِيْمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ ، أَوْ كَسَبَتْ فِيْ إِيْمَانِهَا خَيْرًا، وَلَتَقُوْمَنَّ السَّاعَةُ وَقَدْ نَشَرَ الرَّجُلاَنِ ثَوْبَهُمَا بَيْنَهُمَا فَلاَ يَتَبَايَعَانِه، وَلاَ يَطْوِيَانِه، وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَقَدِ انْصَرَفَ الرَّجُلُ بِلَبَنِ لِقْحَتِه فَلاَ يَطْعَمُهُ، وَلَتَقُوْمَنَّ السَّاعَةُ وَهُوَ يَلِيْطُ حَوْضَهُ فَلاَ يَسْقِي فِيْهِ، وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَقَدْ رَفَعَ أَحَدُكُمْ أُكْلَتَهُ إِلٰى فِيْهِ فَلاَ يَطْعَمُهَا."[۱]

ژباړه: له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی، وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ((قيامت به تر هغې پورې رانه شي، چې له لوېديځ څخه لمر نه وي راختلی. کله چې له لوېديځ څخه لمر راوخېژي او خلک يې ووينې، نو ټول به ايمان راوړي، خو دا به داسې وخت وي، چې ايمان به چا ته گټه نه رسوي. قيامت به داسې ناڅاپي راشي، چې دوه کسان به د رخت معامله کوي، نه به رخت واخلي او نه به يې راټول کړي. قيامت به داسې ناڅاپي واقع شي، چې يو سړی به د خپلو څارويو شېدې راوړي، خو هغه به يې ونه څښي.

۱- صحيح البخاري، ۲/ ۹۶۳.

قيامت به داسې ناڅاپي راشي، چې يو سړی به د اوبو لپاره حوض په ختو جوړوي، خو استعمال به يې نه کړي. قيامت به داسې ناڅاپي راشي، چې يو سړی به خولې ته مړۍ پورته کړي، خو وبه يې نه خوري)).

د قيامت اړوند معلوماتو لپاره د احاديثو په کتابونو کې مستقل بابونه جوړ شوي دي، چې (کتاب الفتن واشراط الساعة) نومېږي، همدارنګه په عربي ژبه کې د علامه ابن کثير رحمه الله (النهاية) له تخريج او حاشيې سره چاپ شوې ده. د سيد احمد رحمه الله (الإشاعة لاشراط الساعة) هم شته. سربېره پر دې نور کتابونه هم په مختلفو ژبو پرې ليکل شوي دي.

## د قيامت د علامو دوه ډولونه

په قران کريم او احاديثو کې چې د قيامت کومې علامې ښودل شوي دي، هغه په دوه ډوله دي:

**۱- علامات صغرىٰ (وړې علامې):**

دې ته علامات بعيده يعنې لرې علامې هم وايي. دا علامې به له قيامت څخه مخکې واقع شي، خو ضروري نه ده چې له دې وروسته دې سمدستي قيامت راشي.

**۲- علامات کبرىٰ (غټې علامې):**

دې ته علامات قريبه يعنې نږدې علامې هم وايي. دا علامې به قيامت ته نږدې واقع شي. کله چې دا علامې واقع شي، نو معلومه به شي چې د قيامت راتگ کومه لرې خبره نه ده.[1]

همدارنگه په غټو علامو کې يوه لويه علامه د مهدي راڅرگندېدل دي.

---

۱- فتح الباري: ۱۱/ ۴۲۸.

## د قيامت د علامو يو بل تقسيم

كله چې يوه غونډه پيلېږي، خلک د غونډې د جوړولو لپاره څوكۍ گانې او ستېج برابروي، بيا كله چې غونډه پای ته ورسېږي، د پروگرام ټول سامان لرې كړي. همدارنگه كاينات هم جوړ شوي دي، مقصد يې هم مخ په ختمېدو دی، قيامت به راشي، خو دا چې څه وخت به واقع كېږي، [پرته له الله تعالی څخه يې] هېچا ته په اړه معلومات نه شته.

رسول الله صلی الله عليه وسلم چې د قيامت كومې نښې ښودلي دي، كه پر هغې فكر وكړو، نو درې ډوله معلومېږي:

**۱- علامات بعيده (لرې علامې):**

هغه علامې دي چې د دنيا په اخري زمانه كې به راڅرگندې شي، خو له قيامت څخه به ډېرې مخكې واقع شي، لكه د رسول الله صلی الله عليه وسلم راتگ هم د قيامت له علامو څخه شمېرل كېږي، لكه په قران كريم كې چې ورته اشاره شوې:

﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَ انْشَقَّ الْقَمَرُ۝﴾ (القمر: ۱)

ژباړه: د قيامت ساعت رانژدې شو او سپوږمۍ وچاوده.

**۲- علامات متوسطه (منځنۍ علامې):**

دا ډول علامې به قيامت ته نږدې واقع شي، خو ضروري نه ده چې له دې علامو وروسته سمدستي قيامت قايم شي، بلكې څه موده وروسته به وي، لكه څو علامې يې دا دي:

۱- ((كله چې وينځه خپل بادار وزېږوي)) د حديث د دې توتې مطلب دا دی چې د وينځو بچي به د پاچاهۍ مقام ته ورسېږي دويم مطلب يې دا دی چې اولاد به پر خپله مور حكمونه چلوي او داسې نور.

۲- د تورو اوښانو (چې په عربو كې د لږ قيمت مال ګڼل كېږي) شپونكي يا توربوستي شپونكي به لوړ بلډنګونه او ماڼۍ جوړې كړي.

د درمنثور په يو روايت كې رسول الله صلى الله عليه وسلم دا علامې په پوره تفصيل سره ذكر كړي دي.

۳- علامات قريبه (نږدې علامې).

هغه علامې دي، چې په ډېر نږدې وخت كې به رامنځ ته شي د دې علامو له پوره كېدو سره سم به ډېر لږ وخت وروسته قيامت واقع شي، لكه د مهدي راښكاره كېدل، له اسمان څخه د عيسىٰ عليه السلام راكوزېدل، د ياجوج ماجوج راوتل، له لوېديځ څخه د لمر راختل، د صفا له غونډۍ څخه د يو حيوان راوتل، چې له خلكو سره به خبرې كوي او داسې نور.

## مهدي د اسلامي امت لپاره د پرمختګ زېرى

د مهدي راڅرګندېدل يو واقعي او حقيقي خبره ده، چې راتګ به يې د اسلامي امت لپاره د پرمختګ او سوكالۍ زېرى وي. مهدي به د دين حفاظت ته ملتې راونغاړي، دين به يو ځل بيا راژوندى كړي او هغه كارنامې به ترسره كړي، چې په لومړۍ اسلامي پېړۍ كې ترسره شوې دي، خو دا چې له لومړۍ پېړۍ وروسته حالات ګډوډ شول، نو ځكه د هر اسلامي كارونه په ټپه ودرېدل، مهدي به هغه ديني چارې يو ځل بيا راژوندۍ كړي او په دې لړ كې به خپلې ټولې هڅې ګړندۍ وساتي

## د دين او قران كريم حفاظت له الفاظو او معنا سره

د دې دنيا مقصد همدا دى، چې بنده خپل خالق وپېژني او د هغه په رضا خپل ژوند تېر كړي، چې دا د دوارو جهانو ستره كاميابي ده. د همدې ستر مقصد لپاره الله تعالى د پيغمبرانو عليهم السلام لړۍ پيل كړه، هر پيغمبر د الله تعالى احكام خپل امت ته رسولي دي، خپل مسوؤليت يې ادا كړى او بيا يې له نړۍ سترګې پټې كړي دي.

پخوانيو پيغمبرانو ته چې كوم شريعتونه وركړل شوي وو، هغه د يوې خاصې زمانې او خاصې سيمې لپاره وو، خو كله چې الله تعالى د ټولو پيغمبرانو عليهم السلام په پاى كې محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم په پيغمبرۍ مبعوث كړ او ده ته يې چې كوم دين وركړ، هغه يو جامع، د ژوند اصول او نه منسوخ كېدونكى دين دى.

دا چې قران كريم د الله تعالى اخري پيغام دی، نو د تلپاتې ساتلو تقاضا يې دا ده، چې هر يو توری او حرف يې وساتل شي، تر څو تر قيامته پورې چې كوم انسانان او پېړيان راځي، هغوی ترې رڼا واخلي. الله تعالى د دې دين د حفاظت مسووليت په خپله غاړه اخيستی دی:

الله تعالى فرمايي:

﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾ (الحجر: ۹)

ژباړه: مونږ دا ذكر نازل كړی دی او مونږ په خپله ددې ساتونكي يو.

قران كريم يوازې د الفاظو نوم نه دی، بلكې د الفاظو او معنا دواړو مجموعه ده، څنګه چې د قران كريم د الفاظو د حفاظت وعده شوې، همدارنګه د هغې د معنا او مضامينو د حفاظت وعده هم شوې ده. د الله تعالى په فضل د دې امت په هره زمانه كې داسې ټولی شته، چې خپله هم پر شريعت عمل كوي او د دين د ساتنې لپاره هم هر ډول قرباني وركوي، په حديث شريف كې راغلي دي:

«لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِيْ قَائِمَةً بِأَمْرِ اللهِ، لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ أَوْ خَالَفَهُمْ، حَتّٰى يَأْتِيَ أَمْرُ اللهِ وَهُمْ ظَاهِرُوْنَ عَلَى النَّاسِ».[1]

ژباړه: زما په امت كې به يوه ډله داسې همېشه وي، چې د الله تعالى احكام به پر ځای ساتي، د دې پروا به نه ساتي چې څوک يې ملګرتيا ونه كړي يا يې خلک مخالفت وكړي، دا سپېڅلې ډله به له همدې شان او شوكت سره تر قيامته پورې وي.

---

۱- صحيح مسلم: ۲/ ۱۴۳.

يعنې دا سپېڅلې ډله به تر قيامته پورې راښكاره كېږي، كه څوک يې ملگرتيا کوي او که نه، دوی به يې پروا نه ساتي، همدارنگه د خلکو د مخالفت پروا به يې هم نه وي.
په يو بل روايت کې راغلي دي:
لاَ تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِيْ مَنْصُوْرِيْنَ لاَ يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ حَتَّى تَقُوْمَ السَّاعَةُ. [1]

## په چا چې قيامت قايم شي، په دې اړه د دوه ډوله حديثونو تطبيق

له پورتنيو دواړو حديثونو څخه معلومېږي، چې د الله تعالی د نېکانو بنده گانو يوه ډله به تر قيامته پورې د دين خدمت کوي او د کلمة الله د سرلوړۍ لپاره به هلې ځلې کوي، دا په داسې حال کې چې د صحيح مسلم او ابن ماجه د لاندې حديثونو څخه داسې معلومېږي، چې قيامت به په بدترو خلکو قايم شي، په هغې وخت کې به د نېکانو نښه هم نه وي.
عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى لَا يُقَالَ فِي الْأَرْضِ: اَللهُ، اَللهُ". [2]
ژباړه: قيامت به تر هغې پورې رانه شي، چې د ځمکې پر سر د الله تعالی نوم اخيستل کېږي.
په بل روايت کې داسې الفاظ راغلي دي:

---

1- سنن ترمذي: ٢/ ٣٣.

2- صحيح مسلم : ١/ ٨٤.

لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ عَلٰى اَحَدٍ يَقُوْلُ: اَللّٰه اَللّٰه.[۱]

د ابن ماجه په روايت كې داسې الفاظ راغلي:

وَلَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ اِلَّا عَلٰى شرارِ النَّاسِ.[۲]

ژباړه: قيامت به په بدترينو خلكو قايم شي.

د دواړه ډوله احاديثو خو په ظاهره كې تعارض او ټكر تر سترګو كېږي، چې حل يې دا دى:

په لومړيو روايتونو كې د (اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ) او (حَتّٰى تَقُوْمُ السَّاعَةُ) الفاظ راغلي دي، چې له دې څخه قيامت كبرىٰ مراد نه دى، بلكې له دې څخه د قيامت يوه لويه علامه مراد ده، يعنې له اسمان څخه د عيسىٰ عليه السلام راكوزېدل.

له دې تطبيق څخه معلومه شوه، چې دا سپېڅلې ډله به د عيسىٰ عليه السلام تر رانازلېدو پورې وي، بيا به ورو ورو حق پرسته خلك له نړۍ رخصتېږي او تر ټولو شرير خلك به د ځمكې پر مخ پاتې شي.[۳]

---

۱- صحيح مسلم.

۲- ابن ماجه، باب شدة الزمان: ۳۰۲.

۳- د تفصيل لپاره وګورئ: نوادر الفقه: ۱/ ۱۳۲ – ۱۳۳.

# خلافت

عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُمْهَانَ رَحِمَهُ الله، قَالَ: حَدَّثَنِيْ سَفِيْنَةُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْخِلاَفَةُ فِيْ أُمَّتِيْ ثَلاَثُوْنَ سَنَةً ، ثُمَّ مُلْكٌ بَعْدَ ذٰلِكَ ثُمَّ قَالَ لِيْ سَفِيْنَةُ: أَمْسِكْ خِلاَفَةَ أَبِيْ بَكْرٍ ، وَخِلاَفَةَ عُمَرَ ، وَخِلاَفَةَ عُثْمَانَ ، ثُمَّ قَالَ لِيْ: أَمْسِكْ خِلاَفَةَ عَلِيٍّ. قَالَ: فَوَجَدْنَاهَا ثَلاَثِيْنَ سَنَةً ، قَالَ سَعِيْدٌ: فَقُلْتُ لَهُ: إِنَّ بَنِيْ أُمَيَّةَ يَزْعُمُوْنَ أَنَّ الْخِلاَفَةَ فِيْهِمْ؟ قَالَ: كَذَبُوْا بَنُوْ الزَّرْقَاءِ بَلْ هُمْ مُلُوْكٌ مِنْ شَرِّ الْمُلُوْكِ.(۱)

ژباړه: له سعيد بن جهمان رحمه الله نه روايت دى هغه وايي: چې ما ته سفينه رضي الله عنه وويل چې رسول الله (صلى الله عليه وسلم) وفرمايل: ((زما په امت كې به تر دېرشو (۳۰) كالو پورې خلافت وي، له هغې وروسته به پاچايي نظام (سلطنت) پيل شي)). بيا ما ته سفينه رضي الله عنه وويل: ((تاسو د ابوبكر صديق [رضي الله عنه] د خلافت موده وشمېرئ، بيا د عمر [رضي الله عنه] د خلافت موده، بيا د عثمان [رضي الله عنه] د خلافت موده او ورپسې د علي [رضي الله عنه] د خلافت موده)). موږ (چې كله وشمېره، نو) هغه دېرش كاله حساب كړ. بيا مې سفينه رضي الله عنه ته وويل: ((بنو اميه خو دا دعوه كوي، چې (پورته ذكر شوې) خلافت د دوى (په كورنۍ كې) دى)).

---

۱- رواه الترمذي: ۳٦/۲.

نو سفینه رضي الله عنه وفرمایل: ((بنو زرقاء دروغ وايي، هغه خو له بدترینو پاچايانو له ډلې څخه دي)).
مفتي رشید احمد گنگوهي رحمه الله د دې حدیث په ترڅ کې لیکي:
ای الخلافة المرضیة انما هي للذین صدقوا الاسلام باعمالهم وتمسکوا بسنة النبي صلی الله علیه وسلم. (۱)
ژباړه: هغه ښايسته خلافت به پر داسې خلکو قایم شي، چې د خپلو نېکو عملونو په وسیله د اسلام تصدیق وکړي او د رسول الله صلی الله علیه وسلم سنت کلک ونیسي.
همدارنګه د عمر بن خطاب رضي الله عنه په روایت کې هم راغلي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم خبر ورکړی دی:
((څه موده پورې به نبوت او رحمت وي، له هغې وروسته به خلافت او رحمت واقع شي)).
په ځینو نورو روایتونو کې د (خلافة علی منهاج النبوة) الفاظ هم راغلي دي. (۲)
له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وروسته یو دول دولتي نظام واقع شو، چې مورږ يې د خلافت په نوم سره تعبیروو او ددې منصب مسوول ته خلیفه وایو. همدې حقیقت ته په کتو خلافت هغه سیپڅلي نظام ته وايي چې تولې چارې يې د سوچه نبوي تګلارې او

---

۱- حواشي کوکب الدري: ۲/ ۵۵، وحواشي ترمذي: ۲/ ۳۶، وکذا في مجمع بحار الانوار: ۲/ ۹۲.
۲- المستدرك للحاکم: ۴/ ۵۲۰، حدیث: ۸۴۵۹.

منهج په اساس سرته رسېږي، د نبوي نظام ټول خصوصيات په كې پراته وي او په نبوي منهج (تګلاره) روان وي.

**د خلافت تعريف:**

شاه ولي الله دهلوي رحمه الله د خلافت په تعريف كې داسې وايي:

((خلافت هغه عمومي دولت دی، چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم يو نايب بنده د اسلامي علومو په وسيله هغه ژوندي وساتي، د اسلام پنځه ګوني اركان پر ځای كړي، جهاد او د دې اړوند ټولو چارو ته دوام وركړي، د قضاء چارې سرته ورسوي، حدود قايم كړي، ظلمونه د ځمكې له مخ څخه لرې كړي، خلكو ته د نېكۍ حكم او له بدو چارو يې منع كړي، چې دې ته موږ خلافت ويلی شو)). [۱]

مولوي عبدالشكور لكهنوي رحمه الله د خلافت په اړه ليكي:

((خلافت د ځايناستي په معنا دی، څوک چې د بل چا پر ځای كېني او د هغه كارونه پر مخ وړي، نو دې ته خليفه وايي. د شريعت په اصطلاح خلافت هغه دولت ته وايي، چې نيابت (ناسته) يې د رسول الله [صلی الله عليه وسلم] د دين د قايمولو او د ديني احكامو د نافذولو لپاره وي)). [۲]

له دې څخه معلومه شوه، چې د خلافت لپاره داسې دولت ضروري دی، چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د استازيتوب او نيابت وړتيا او صلاحيت ولري.

---

۱- ازالة الخفاء : ۱ / ۱۹.

۲- تحفه خلافت : ۷۸ مخ.

**د خلافت اهميت:**

د دې امت لپاره خليفه او خلافت تر ټولو ضروري امر دى، چې ارزښت يې له دې څخه هم معلومېږي، چې كله رسول الله صلى الله عليه وسلم وفات شو، نو تر هغې پورې يې د تدفين چارې سرته ونه رسېدلې، څو پورې چې يې د رسول الله صلى الله عليه وسلم پر ځاى خليفه او ځايناستى ټاكلى نه و. د رسول الله صلى الله عليه وسلم د قولي او عملي اشارو په رڼا كې د صحابه كرامو د اجماع په صورت كې ابوبكر صديق رضي الله عنه د اسلامي امت لومړنى خليفه وټاكل شو او د تجهيز او تكفين چارې يې سرته ورسولې.

په دې لړ كې شاه ولي الله دهلوي رحمه الله ويلي دي:

((له صحابه كرامو رضي الله عنهم سره د رسول الله صلى الله عليه وسلم له تدفين څخه مخكې د خليفه د ټاكلو غم و، له دې څخه معلومه شوه، كه صحابه كرامو ته د شريعت له لوري د خليفه د ټاكلو فرضيت معلوم نه واى، نو د رسول الله [صلى الله عليه وسلم] پر تدفين به يې د خليفه ټاكلو ته لومړيتوب نه وركولى)).[1]

((پر مسلمانانو د داسې خليفه ټاكل فرض كفايي دي، چې د خلافت شرطونه په كې پوره وي، دا عمل به تر قيامته پورې فرض وي)).[2]

**خليفه:**

خليفه د رسول الله صلى الله عليه وسلم ځايناستى ګڼل كېږي، نوموړى بايد د قران كريم او احاديثو په علم سنبال وي، له دې

---

۱- ازالة الخفاء : ۱/ ۲۱.

۲- ازالة الخفاء : ۱/۱۹.

علومو ښخه ښه استنباط کولی شي، د نبوي سنتو پابند وي او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په شان یې په زړه کې د انسانیت د خیرخواهي ماده پرته وي. د خلیفه لپاره ضروري تکي دا دي، چې هغه باید مسلمان، نارینه، عاقل، بالغ، عادل، ازاد، متکلم، اورېدونکی، لیدونکی او د اجتهاد وړتیا په کې پرته وي.[1]

**راشده خلافت:**

ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم له وفات وروسته په ډېر نازک حالت کې د خلافت چارې وسپارل شوې، چې دوه کاله، درې میاشتې او دیارلس ورځې یې خلافت وکړ.

ابوبکر صدیق رضي الله عنه له خپل ځان ښخه وروسته عمر فاروق رضي الله عنه د مسلمانانو خلیفه وټاکه، چې خلافت یې لس کاله او شپږ میاشتې وخت ونیوه. عمر فاروق رضي الله عنه د ابو لولو مجوسي لخوا د سهار په لمانځه کې زخمي شو. عمر رضي الله عنه د خلافت لپاره عثمان، علي، عبدالرحمن بن عوف، طلحه، زبیر او سعد بن ابي وقاص (رضي الله عنهم) غوره کړل.[2]

د دې تولو په مشوره عثمان بن عفان رضي الله عنه د خلافت لپاره وړ شخصیت وګڼل شو او د خلافت چارې یې ورته وسپارلې. د نوموړي د خلافت موده تقریبا دولس کاله وه، چې په پای کې د ځینو باغیانو له لاسه شهید شو. د ده له شهادت وروسته د مهاجرینو او

---

١- ازالة الخفاء.

٢- البداية والنهاية : ٧/ ١٤٢.

انصارو په ټينګار علي رضي الله عنه خليفه شو، چې څلور كاله يې د خلافت دنده سرته ورسوله.

**د راشده خلافت دويمه درجه خلافت:**

د خلفاء راشدينو له خلافت نه وروسته دويمه درجه خلافت پيل شو، چې موږ يې په ملوكيت او پاچاهۍ هم تعبيرولی شو. دغه دويمه درجه خلافت د بنو اميه له خلافت څخه پيل شو، د بنو عباس په وسيله مخكې لاړ، تر دې چې د تركيې عثماني خلافت ته ورسېده. دغه خلافت د انګرېزانو د يوې لوی پلمې (۱۹۲۱) زېږديز كال له مخې د منځه لاړ.

په دې دويمه درجه خلافت كې د رسول الله صلی الله عليه وسلم پر سنتو هغه شان عمل نه كېده، څنګه چې د خلفاء راشدينو يعنې لومړني خلافت په موده كې كېده. د خلافت او امارت ډېرو مشرانو په ځينو شرعي احكامو اعتراضونه هم وكړل، چې له مخې يې په دولت كې ډېرې نيمګړتياوې هم راپيدا شوې.

**دويمه درجه خلافت د اسلامي خلافت په نوم نومول:**

سربېره پر دې [كه څه هم په دې دويمه درجه كې څه ناڅه نيمګړتياوې وې، خو بيا هم] دې ته د اسلامي خلافت نوم اخيستلی شو، په داسې حال كې چې په هغه وخت كې اسلامي هېوادونه دارالحرب ګرځېدلي نه وو، يو ديني چاپېريال و، چې زياتره خلك په اسلامي تګلاره روان وو. دښمن د ننني حالت په شان نه وو، چې مسلمانان يې يوه مړه كړې ده، بلكې په دې فكر كې وو، چې څنګه وكولی شي څو اسلامي نړۍ تس نس كړي. دا چې نن د خلفاء

راشدینو په شان اسلامي خلافت نه شته، نو موږ مسلمانانو سره دومره احساس شته، چې دغه کار د ډېر ارزښت وړ دی. همدې تولو چارو ته په کتو رسول الله صلی الله علیه وسلم د خلفاوو په اړه (په دولتي چارو کې) خبرو ته د غوږ نیولو او د هغې پر ځای کولو تاکید کړی دی، د دې لپاره چې دغه نظام تس نس نه شي. همدې تاکید ته په پام صحابه کرامو، تابعینو او د الله تعالی غوره بنده ګانو له امیرانو سره بیعت کړی او د هغوی له احکامو یې سرغړونه - نه ده کړې.

**له پاچا څخه سرغړونه او بغاوت حرام دی:**

شاه ولي الله دهلوي رحمه الله وایي: «که مسلمانان د یو چا په پاچا کېدو اتفاق وکړي، نو له دې وروسته د هغه له حکومت څخه بغاوت کول حرام دي، که دا پاچا د خلافت په شرطونو برابر هم نه وي، پروا نه کوي، مګر په هغه صورت کې ترې بغاوت پکار دی، چې ښکاره کفر په کې ولیدل شي». [۱]

د دې کتاب په بل ځای کې لیکل شوي:

«کله چې خلیفه د اسلامي مصلحتونو په هکله حکم وکړي او (حکم یې) د شریعت خلاف نه وي، نو (پرځای کول یې) پر مسلمانانو لازم دي، که خلیفه عادل وي او که ظالم، پروا نه کوي».

لنډه دا چې د خلافت دغه نظام تر دیارلسمې هجري پېړۍ پورې روان و. دا د دویمې درجې خلافت و.

---

۱- ازالة الخفاء : ۱/ ۲۸.

**د اسلامي امت پنځه زماني:**

: وَهُوَ قَاعِدٌ، أَنَا أَحْفَظُهَا، فَقَعَدَ إِلَيْهِمْ أَبُو ثَعْلَبَةَ، فَقَالَ حُذَيْفَةُ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: « [ص:٢٢٤] إِذَا شَاءَ أَنْ يَرْفَعَهَا، ثُمَّ يَكُونُ مُلْكًا عَاضًّا فَتَكُونُ مُلْكًا مَا شَاءَ اللَّهُ، ثُمَّ يَرْفَعُهُ إِذَا شَاءَ أَنْ يَرْفَعَهُ مُلْكًا جَبْرِيَّةً، ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةٌ عَلَى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ، ثُمَّ سَكَتَ

عَنْ حُذَيْفَةُ بْنُ الْيَمَانِ رضي الله عنه، قَالَ: قَالَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إن أول دينكم نبوة ورحمة وَتَكُونُ النُّبُوَّةُ فِيكُمْ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُونَ، ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ، ثُمَّ تَكُونُ الْخِلَافَةُ عَلَى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ فَتَكُونُ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُونَ، ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ، ثُمَّ يَكُونُ مُلْكًا عَاضًّا فَيَكُوْنُ مُلْكًا مَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَكُوْنَ، ثُمَّ يَرْفَعُهُ اللهُ، ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا جَبْرِيَّةً، مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُوْنَ، ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ، ثُمَّ تَكُونُ الْخِلَافَةُ عَلَى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ، تعمل في الناس بسنة النبي ويلقى الإسلام بجرانه في الارض، يرضى عنها ساكن السماء وساكن الارض، لا تدع السماء من قطر إلا صبته مدرارا، ولا تدع الارض من نباتها وبركاتها شيئا إلا أخرجته.[1]

---

١- رواه احمد في مسنده حديث النعمان بن بشير رضي الله عنه ، رقم الحديث: ١٨٣٦٦ ، والبيهقي في دلائل النبوة.

ژباړه: له حذيفه بن يمان رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:

۱. ستاسو دين له نبوت او رحمت څخه پيل شوى دى، څو پورې چې الله تعالى وغواړي، تر هغې پورې به ستاسو په منځ كې موجود وي، بيا به يې الله تعالى پورته كړي. (دا نبوت او رحمت د رسول الله صلى الله عليه وسلم تر وفات پورې و، يعني د هجرت تر يوولسم كال پورې يې دوام وموند).

۲. بيا به د نبوت پر منهج او طريقه خلافت قايم شي، دا به هم د الله تعالى په خوښه تر يوې مودې پورې وي، بيا به يې الله تعالى پورته كړي. (دغه خلافت د رسول الله [صلى الله عليه وسلم] له وفات څخه وروسته تر دېرشو كالو پورې وغځېده).

۳. له دې وروسته به د سخت او پياوړي ملوكيت او پاچايي زمانه راشي، دا به هم تر هغې پورې وي، چې الله تعالى يې وغواړي، بيا به يې پورته كړي. (دغه دريېمه زمانه د هجرت له يوڅلوېښتم (۴۱) كال څخه پيل شوه او د هجرت په (۱۳۳۸) كال پاى ته ورسېده).

۴. له دې وروسته به د زورواكۍ حكومتونه پيل شي، الله تعالى به دا هم ختم كړي. (كله چې د (۱۳۳۸) كال خلافت له منځه لاړ، نو اوس د وړو وړو پاچايانو او زورواكۍ زمانه ده.[1]

---

۱- له وړو وړو پاچايانو څخه موخه د هېوادونو وېش دى، چې پخوا اسلامي قلمرو ډېر پراخه و، تر دې چې د خلفاء راشدينو په زمانه كې اسلامي قلمرو تر څوارلسو هېوادونو پورې رسېدلى و، هغه قلمرو تس نس شوه، په برخو برخو ووېشل شوه، نو څكه ورته وړه پاچايي وايي. (ژباړن)

۵. په پای کې به یو ځل بیا خلافت راځي، چې بالکل د نبوت پر منهج به روان وي، اسلام به خپله غاړه بېرته پر ځمکه کېږدي (یعنې په ځمکه کې به اسلامي نظام قایم شي). د خلافت په دې زمانه کې به د ځمکې او اسمان مخلوق خوشحاله وي، ښه بارانونه به وشي، ځمکه به ډېر ښه نباتات راشنه کړي او برکتونه به ترې راووځي.

په اخره زمانه کې به د نبوت پر منهج اسلامي خلافت راشي، چې مهدي زمانې پورې به تړلی وي [یعنې مهدي به په کې وي].

**دولس خلیفه ګان:**

په حدیث شریف کې راغلي دي:

عن جابر بن سمرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: يكون من بعدي اثنا عشر أميرا، قال: ثم تكلم بشيء لم أفهمه، فسئلت الذي يليني؟ فقال: كلهم من قريش.[1]

ژباړه: له جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روایت دی، هغه وایي: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «له ما وروسته به دولس خلیفه ګان راشي». راوي وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم څه نور هم وویل، خو زه پرې پوه نه شوم. ما په خپل څنګ کې له ناست سړي څخه پوښتنه وکړه، نو هغه راته وویل، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «ټول به له قریشو څخه وي».

په یو بل حدیث کې راغلي: «له ما وروسته بل پیغمبر نه راځي، هو! خلیفه ګان به راشي، چې شمېر به یې ډېر وي».

۱- رواه الترمذي: ۲/ ۳٦، رقم: ۲۲۲۳، وابو داود: ۲/ ۵۸۸. حديث حسن صحيح.

مورې د عرف له مخې دې دولسو تنو ته خليفه ګان ويلی شو، په دې کې تر ټولو راجح خبره دا ده: ضروري نه ده چې د دې دولسو خليفه ګانو لړۍ دې د رسول الله صلی الله عليه وسلم له وفات وروسته سمدستي پيل شي، بلکې دا شمېر به په مختلفو زمانو کې تر قيامته پوري پوره کېږي. د (بذل المجهود) ليکوال ليکلي دي:

((قال البعض: المراد بهم الذين هم علی سيرة الخلفاء (الراشدين) واخرهم الإمام المهدي)).

ژباړه: ځينو علماوو ويلي، چې له دې نه هغه خلک مراد دي، چې د خلفاء راشدينو دسيرت پيروي کوي؛ ددوی په اخرکې به امام مهدي وي.

مولوي خليل احمد سهارنپوري رحمه الله دې قول ته ترجيح ورکړې ده، امام سيوطي او شاه ولي الله دهلوي (رحمهما الله) هم دا قول خوښ کړی دی، البته دا حقيقت دی چې د دې ټولو خلفاوو اخري خليفه به مهدي وي. امام ابو داود رحمه الله د دولسو خلفاوو حديث په (کتاب المهدي) کې ذکر کړی دی او بيا يې دې ته اشاره کړې، چې د دوی دولسم خليفه به مهدي وي.

د حديث شريف چې کومه تشريح وشوه، سربېره پر دې يو قول دا هم دی: ((له دولسو خليفه ګانو څخه د بني اميه أميران او پاچايان مراد دي، چې د امير معاويه [رضي الله عنه] له سلطنت وروسته يې مالکان شول. ګويا د حديث مطلب دا دی چې تر دې دولسو خليفه ګانو پورې به د اسلام قوت، شان او شوکت د حکومت په شکل وي

او د دوی په زمانه کې به سلطنت پیاوړی شي. د دې دولسو خلیفه گانو نومونه دا دي: (۱) یزید بن معاویه (۲) معاویه بن یزید (۳) عبدالملک (۴) ولید (۵) سلیمان (۶) عمر بن عبدالعزیز (۷) یزید بن عبدالملک (۸) هشام (۹) ولید بن یزید (۱۰) یزید بن ولید بن عبدالملک (۱۱) ابراهیم بن ولید (۱۲) مروان بن محمد. په بنو امیه کې دا دولس خلیفه گان وو، له دوی وروسته سلطنت له بنو امیه څخه د بنو عباس لاس ته ورغی)).

**دولس خلیفه گان به څنگه وي؟**

په دې اړه یو بل قول هم شته او هغه دا دی: ((له دې څخه هغه دولس خلیفه گان مراد دي، چې له مهدي څخه به وروسته وي، چې پنځه به په کې د حسن [رضي الله عنه] په اولاده کې وي او پنځه به د حسین [رضي الله عنه] په اولاده کې. له دې وروسته به یو مشر بیا د حسن [رضي الله عنه] له اولادې څخه، بل به د حسین [رضي الله عنه] څخه وي او له هغه وروسته به یې زوی وي. په دې توگه به ټول دولس خلیفه گان وي او ټول به حق وي)).[1]

په دې اړه یو قول دا هم دی: ((خلفاء راشدین (رضي الله عنهم)، حسن رضي الله عنه، حسین رضي الله عنه، معاویه رضي الله عنه، عبدالله بن زبیر رضي الله عنه او عمر بن عبدالعزیز رحمه الله، چې دا ټول اته تنه شو. له دوی وروسته مهدي عباسي رحمه الله او طاهر

۱- مجمع بحار الانوار: ۱/ ۸۲ – ۸۴.

رحمه الله هم عادلان وو او پاتې دوه تنه چې خلک يې په انتظار کې دي، په دوی کې يو تن مهدي دی)) [۱]

**يادونه** دلته يوه مهمه خبره دا ده چې دا دولس خليفه گان به معصوم نه وي او د نبوت له درجې څخه به په لوړه درجه کې نه وي. بله دا چې امامت به يې کوم خاص صفتونه او امتيازونه - نه لري، لکه څنگه چې د شيعه گانو عقيده ده د شيعه گانو په اصطلاح دوی ته اثنا عشر امام، ويل کېږي

په دې لړ کې مفتي يوسف لدهيانوي رحمه الله وايي ((اهل سنت والجماعة هم دوی خپل امامان گڼي، خو له دوه شرطونو سره

۱. هغوی (شيعه گان) دا عقيده لري، چې دغه دولس امامان د پيغمبرانو په شان له گناه څخه معصوم او پاک دي، اطاعت يې فرض دی او د الله تعالی له لوري مامور شوي دي. د اهل سنت والجماعة په نزد دا عقيده يوازې پيغمبرانو پورې خاص ده.

۲. دوی شيعه گان چې کوم مسايل هغوی ته منسوبوي، هغه صحيح نه دي او د دې روايتونو نقل کوونکي د باور وړ نه دي)) [۲]

---

۱- تاريخ الخلفاء : ۱۲.

۲- المهدي والمسيح : ۲۳.

## د دين راژوندي كول

عن أبي علقمة رحمه الله عن أبي هريرة رضي الله عنه، فيما أعلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: إن الله يبعث لهذه الامة على رأس كل مائة سنة من يجدد لها أمر دينها.[۱]

ژباړه: بې شكه الله تعالى د دې امت په هره پېړۍ يو داسې شخص ټاكي، چې د دې امت ديني چارې به له سره راژوندۍ او پياوړې كوي.

تر قيامته پورې د اسلام د مبارك دين ساتل د الله تعالى يو غيبي نظام دى، چې د دې امت لپاره د الله تعالى له لوري لوى نعمت دى، څو شيطاني ځواكونه تل په دې كوښښ كې دي، چې په دې كې لاسوهنه وكړي او تحريف يې كړي.

**د مجدد صفتونه:**

- په علم او عمل كې به د رسول الله صلى الله عليه وسلم رښتينى ځايناستى او نايب وي.
- د الله تعالى له لوري به د پيغمبر په شان جذبوونكى شخصيت وي
- د نسل، كورنۍ، اخلاقو هر لحاظه به ورسره خلك يو ځاى كېږي.
- د خپل ايماني قوت له مخې به د امت د اصلي ناروغيو درملنه د قران كريم او احاديثو په اساس كوي او د هغوى د علاج لپاره به يوه جامع لايحه جوړوي، بيا به هغې ته عملي جامه وراغوندي.

---

۱- مستدرك: ۴/ ۵٦۸، رقم ۸۵۹۳.

✍ بدعات او ناوړه رواجونه به له منځه وړي.
✍ عقايد، عبادات، ټولنيزې چارې، اخلاق، سياست بلكې هر څه به د شريعت په رڼا كې راژوندي كوي.
✍ د حق په لړ كې به د هېچا پروا نه ساتي.
✍ الله تعالى به د خلكو په زړونو كې له هغه سره مينه پيدا كوي
✍ هغه خلک به يې ملګري وي، چې د دين درد يې په زړه كې وي.
✍ دوى به هم د پيغمبرانو په شان له مخالفت سره مخ كېږي، تكليفونه به زغمي، خو هغوى به د دين د سرلوړي لپاره له صبر، استقامت، اخلاص او داده زړه څخه كار اخلي، د غيبي بادونو په وسيله به ترې د تكليفونو وربخې لرې كېږي او په نړۍ كې به يې سكه چلېږي.
✍ مجدد له شخصي پلوه په علومو كامل عالم وي او په قران كريم او احاديثو كې به ژوره پوهه لري.
✍ مجدد به علم خپروي او د پوهانو به درناوى كوي.
✍ الله تعالى به د دې صفتونو خاوند په هره پېړۍ كې پيدا كوي

**اخري مجدد به مهدي وي:**

د همدې مجددينو اخري شخصيت به مهدي وي.

مولوي رشيد احمد گنگوهي رحمه الله په دې اړه ليكي:

((هُوَ آخِرُ مُجَدِّدي هٰذِهِ الْأُمَّةِ)).[1]

ژباړه: هغه به د دې امت اخري مجدد وي.

---

۱- الكوكب الدري: ۲/ ۵۷.

**مفتي محمود حسن ګنګوهي رحمه الله ليكي:**

**((مجدد به څېله ځان د الهي الهام په وسيله مجدد ګڼي، خو لازمه نه ده چې هغه الهام دې د وحې په درجه کې وي. همدارنګه مجدد د ځينو خاصو كارنامو په وسيله هم پېژندل كېږي)).[1]**

۱- خلاصه از فتاوى محمودية، باب الاشنات، ۱۲/ ۲۰۳.



## د مهدي د راڅرگندېدو (ظهور) تاكيد د احاديثو په رڼا كې

د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مباركو احاديثو كې د مهدي د راتـگ په اره ډېر تاكيد شوى دى. په يو ځاى كې فرمايي:

عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه، عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: لو لم يبق من الدنيا الا يوم – قال: زائدة (الراوي) – لطول الله ذلك اليوم حتى يبعث رجلا مني (او قال) من اهل بيتي، يواطئ اسمه اسمي واسم ابيه اسم ابي. زاد في حديث فطرٍ: يملأ الارض قسطا وعدلا كما ملئت ظلما و جورا.[1]

ژباړه: له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى هغه وايي: هغه كه د دنيا يوه ورځ هم پاتې شي، نو الله تعالى به يې دومره اوږده كړي، چې په دې كې به يو شخص له موږ څخه يا (يې داسې وفرمايل) زما له اهل بيتو څخه داسې مبعوث كړي، چې نوم به يې زما د نامه په شان وي او د پلار نوم به يې زما د پلار د نوم په شان وي. د فطر په روايت كې يوازې دومره زياتوالى راغلى: هغه به ځمكه له عدل او انصاف څخه داسې ډكه كړي، څنگه چې له ظلم او ستم څخه ډكه وه.

په يو بل حديث كې داسې راغلي دي:

---

۱- ابو داود ، كتاب المهدي : ۲/ ۵۸۸.

عن ابي هريرة رضي الله عنه، قال: لو لم يبق من الدنيا الا يوم لطول الله ذلك اليوم حتى يلي.[١]

**ژباړه: له ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي:**

**که د دنيا يوه ورځ پاتې هم وي، نو الله تعالی به يې دومره اوږده کړي، تر دې چې (يوشخص به) والي شي.**

**په يو بل ځای کې داسې فرمايي:**

عن عبد الله بن مسعود رضي الله عنه، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لاتذهب الدنيا حتى يملك العرب رجل من اهل بيتي يواطئ اسمه اسمي.[٢]

**ژباړه: دنيا به تر هغې پورې فنا نه شي، څو پورې چې زما په کورنۍ کې يو داسې شخص پيدا شوی نه وي، چې د عربو د ځمکې مالک نه شي او نوم به يې زما د نوم په شان وي.**

**په پورتني روايت کې د (يملک العرب) الفاظ راغلي دي، نو دا چې د عربو ځمکه د اسلام پايتخت ګڼل کېږي، نو ځکه هغې د مالک کېدو څخه د ټولې ځمکې مالک کېدل مراد دي، همدارنګه په خلکو کې عربان اشرف الناس يعنې غوره خلک دي، نو ځکه د عربو له سردارۍ او مشرۍ څخه د ټولو خلکو مشري مراد ده.**

١- ترمذي : ٢/ ٤٧، هذا حديث حسن صحيح.

٢- ترمذي : ٢/ ٤٧ ، هذا حديث حسن صحيح.

مولوي منظور احمد نعماني رحمه الله ليكي:

((دا هم ويل شوي، چې دغه حكومت به په لومړيو كې په عربو كې پيل شي، بيا به ټولې دنيا ته ورسېږي يا دا چې د حكومت اصلي مركز به د عربو ځمكه وي)) [1]

**د قيامت يوه بله نښه:**

**دا خبره په د پر بښه انداز سره بيان شوې ده:**

لا تذهب الايام والليالي حتى يملك رجل من اهل بيتي ، يواطئ اسمه اسمي واسم أبيه اسم أبي، فيملأ الأرض قسطا وعدلا كما ملئت ظلما وجورا. [2]

**ژباړه: ورځې او شپې به تر هغې پورې فنا نه شي، څو پورې چې زما له كورنۍ څخه داسې شخص (پر ټوله نړۍ) غالبه نه شي، چې نوم به يې زما د نوم په شان او د پلار نوم به يې زما د پلار د نوم په شان وي: ځمكه به داسې له عدل او انصاف څخه ډكه كړي، څنګه چې مخكې له ظلم او ستم څخه ډكه وه.**

لا تقوم الساعة حتى تملأ الارض ظلما وجورا وعدوانا ثم يخرج من اهل بيتي من يملا قسطا وعدلا كما ملئت ظلما وعدوانا. [3]

**ژباړه: قيامت به تر هغې پورې رانه شي، څو پورې چې ځمكه له ستم او ظلم څخه ډكه نه شي، بيا به زما له كورنۍ (اهل بيتو) څخه يو**

---

۱- معارف الحديث : ۸/ ۱۷۰

۲- مستدرك للحاكم ، حديث: ۸۷۱۳.

۳- مستدرك ، حديث: ۸٦٦۹ ، وقال الحاكم: صحيح على شرط الشيخين ووافقه الذهبي.

داسې شخص راپیدا شي، چې هغه به له عدل او انصاف څخه داسې ډکه کړي، څنګه چې مخکې له ظلم او ستم څخه ډکه وه.

د دې حدیث په اړه د شیخ الباني رحمه الله نظریه داسې ده:

وبعد ان وافق الالباني كلا من الحاكم والذهبي على حكمهما على الحديث بالصحة، قال عن احمد الرواة: وابو الصديق الناجي اسمه بكر بن عمرو وهو ثقة اتفاقا، محتج به عند الشيخين وجميع المحدثين، فمن ضعف حديثه هذا من المتاخرين فقد خالف سبيل المؤمنين.[1]

ژباړه: شیخ ناصر الدین الباني رحمه الله د دې حدیث د صحت په لړ کې د حاکم او ذهبي له رایي سره اتفاق کړی دی، چې د ابوصدیق الناجي خپل نوم بکر بن عمرو دی او د ټولو علماوو په اتفاق ثقه دی، د شیخینو او ټولو محدثینو په نزد یې روایتونه د منلو وړ دي، خو دا چې په متاخرینو کې چا د هغه دا حدیث ضعیف ګڼلی دی، نو هغه د مسلمانانو له تګلارې څخه مخالفت کړی دی.

د دې ټولو روایتونو لنډیز دا دی چې تر هغې پورې به ورځ او شپه فنا نه شي، یا تر هغې پورې به قیامت رانه شي، څو پورې چې مهدي راڅرګند شوی نه وي. همدارنګه د مهدي راڅرګندېدل حتمي او ضروري خبره ده، تر دې چې د هغه په راڅرګندېدو ایمان واجب دی، لکه چې په دې اړه به نور تفصیل وروسته ذکر شي.

---

۱- المهدي : ۲۲۳.

**د مهدي په لاس د بيعت کولو تاکيد:**

د انسان لپاره لازمي خبره ده، چې کله هم د نېکۍ او خير ښېګڼې کار ترسره کېږي، بايد دا په کې د خپل وس مطابق برخه واخلي، همدارنګه د اسلامي شريعت د زده کړې، هغې ته د لارې د هوارولو، د خنډونو د لرې کولو، له هغې سره د مرستې کولو په لړ کې بايد خپلې هڅې ګړندۍ وساتي، ځکه چې دا د يو مسلمان اخلاقي فريضه ده. ، خو کله چې مهدي راڅرګند شي، نو په احاديثو کې ډېر سخت تاکيد راغلی، چې بايد له هغه سره بيعت وشي. د دې تاکيد اندازه له دې حديث څخه هم ښه معلومېږي:

((په چا چې دا وخت (يعنې د مهدي زمانه) راشي، نو هغه ته دې ورشي، اګر که په واورو ښوئيدو هم وي)).

په بل حديث کې داسې راغلي دي:

عن عبد الله بن مسعود رضي الله عنه قال: بينما نحن عند رسول الله صلى الله عليه وسلم إذ أقبل فتيةٌ من بني هاشم، فلما رآ هم النبي صلى الله عليه وسلم اغر و رقت عيناه وتغير لونه. قال (عبدالله): فقلت: ما نزال نرىٰ في وجهك شيئا نكرهه. فقال: إنا أهل بيت اختار الله لنا الاخرة على الدنيا، و إن أهل بيتي سيلقون بعدي بلاء و تشريدا وتطريدا حتى ياتيَ قوم من قبل المشرق، معهم رايات سود، فيسئلون الخير فلا يعطونه، فيقاتلون، فينصرون، فيعطون ما سئلوا، فلا يقبلون حتى يدفعوها الى رجل

من اهل بيتي، فيملأها قسطا كما ملئوها جورا، فمن ادرك ذلك منهم فلياتهم ولو حبواً على الثلج.[۱]

ژباړه: له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی هغه وايي: ((موږ له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره وو، چې په دې کې ناڅاپه د بنو هاشمو څو زلمي (رسول الله [صلی الله عليه وسلم] ته) راغلل. کله چې يې هغوی ته وکتل، نو له سترګو څخه يې اوښکې روانې شوې. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وايي: ما ترې پوښتنه وکړه چې موږ دې پر مخ د غم اثار وينو، چې دا مو دردوي. رسول الله (صلی الله عليه وسلم وفرمايل: (موږ اهل بيتو ته الله تعالی دا خصوصيت راکړی دی، چې د دنيا په نسبت يې راته اخرت غوره کړی دی. له ما وروسته به زما پر اهل بيتو مصيبتونه راشي، تر دې چې د ختيځ له لوري به يو قوم راښکاره شي، چې تور بيرغونه به ورسره وي، زما اهل بيت به له هغوی څخه د خير غوښتنه کوي، خو هغوی به يې نه ورکوي، نو قتال به وکړي، تر دې چې په جګړه کې به بريالي شي. بيا به ورته خپل غوښتل شوی [illegible] ور[illegible]ل شي، خو هغوی به يې وانخلي، تر دې چې زما له اهل بيتو څخه [illegible] شخص ته ورکړل شي، هغه به ځمکه له عدل او انصاف څخه داسې ډکه کړي، څنګه [illegible] له ظلم څخه ډکه وه. څوک چې دغه داله ومومي، که په واورو باندې په ښوئېدو هم ورسې[illegible] شي، نو هغه ته دې ځان ورسوي).

شاه ولي الله دهلوي رحمه الله وايي: ((کله چې د مهدي خلافت راشي. نو خليفه پورې چې کومې چارې ترلي دي، په هغې کې يې اطاعت او پيروي واجبه ده)).[۲]

---

۱- ابن ماجه، حديث: ۴۰۸۲.

۲- ازالة الخفاء: ۱/ ۲۶.



## د مهدي د راڅرګندېدو احاديث

**۱ - د مهدي د احاديثو حيثيت:**

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله وايي، چې د مهدي د راڅرګندېدو اړوند احاديث د تواتر حد ته رسېدلي دي (شيخ برزنجي او علامه سيوطي رحمهم الله دواړو له تواتر څخه د معنوي تواتر معنا اخيستې ده).

په (شرح عقيدة السفاريني) کې ليکل شوي دي:

قد كثرت الروايات بخروج المهدي، حتى بلغت حدا تواتر المعنوي.[۱]

ژباړه: د مهدي د راڅرګندېدو اړوند احاديث دومره ډېر روايت شوي، چې د معنوي تواتر حد ته رسېدلي دي.

شاه عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله په (اشعة اللمعات) کې ليکلي:

((در این باب احادیث بسیار وارد شده قریب بتواتر)).[۲]

ژباړه: په دې اړه ډېر احاديث روايت شوي دي، چې تواتر ته بالکل نږدې دي.

قاضي شوکاني رحمه الله ليکلي دي:

۱- شرح عقيدة السفاريني: ۲/ ۸۰.

۲- اشعة اللمعات: ۴/ ۳۳۸.

وجميع ما سقناه بلغ حد التواتر، كما لا يخفىٰ على من له فضل اطلاع.

**ژباړه: موږ چې څومره روايتونه ذكر كړل، هغه د تواتر حد ته رسېدلي دي، لكه څنګه چې له عالمانو څخه دا خبره پټه نه ده.**[1]

**قاضي شوكاني رحمه الله په خپل بل كتاب (التوضيح، في تواتر ماجاء في المهدي المنتظر والدجال والمسيح) كې ليكي:**

الاحاديث الواردة في المهدي التي امكن الوقوف عليها خمسون حديثا، فيه الصحيح والحسن والضعيف المنجبر - وهي متواترة بلا شك وشبهة بل يصدق وصف التواتر على ما دونها علىٰ جميع الاصطلاحات المحررة في الاصول واما الاثار على الصحابة المصرحة بالمهدي فهي كثيرة ايضا لها حكم الرفع اذ لا مجال للاجتهاد في مثل ذلك.[2]

**ژباړ: تر كومه پورې چې د مهدي اړوند روايتونو باندې سرې پوه شي، شمېر يې تر پنځوسو پورې رسېږي، چې په دې كې صحيح، حسن او منجبر ضعيف (يعنې د نورو روايتونو په رڼا كې يې د ضعف تلافي شوې وي) هر ډول روايتونه شامل دي. دا ټول روايتونه له شك پرته متواتر دي، بلكې د احاديثو د اصولو له مخې له دې څخه پر كم تعداد لرونكو روايتونو هم د تواتر مصداق كېږي. سربېره پر دې د**

---

۱- تحفة الاحوذي: ٦/ ٤٠٢.

۲- المهدي: ٣١، لعادل الذكي.

مهدي اړوند د صحابه کرامو اثار هم ډېر زيات دي او هغه د مرفوع حديثونو په حکم کې راځي، چې په دې اړه د اجتهاد هېڅ امکان نه شته.

د مهدي احاديث او اثار چې چا ذکر کړي، په لاندې لړليک کې يې د زياتو روايتونو اندازه معلومېږي.

| د ليکوال نوم | د کتاب نوم |
|---|---|
| ۱. الامام البخاري | صحيح البخاري |
| ۲. الامام مسلم | صحيح مسلم |
| ۳. الامام الترمذي | جامع الترمذي |
| ۴. الامام ابن ماجه | سنن ابن ماجه |
| ۵. الامام النسايي | السنن الكبرىٰ للنسايي |
| ٦. الامام احمد | مسند احمد |
| ۷. ابن حبان البستي | صحيح ابن حبان |
| ۸. محمد بن عبدالله الحاكم | المستدرك للحاكم |
| ۹. ابوبكر بن محمد بن ابي شيبة | مصنف ابن ابي شيبة |
| ۱۰. ابوبكر الاسماعيلي | معجم الشيوخ |
| ۱۱. عبدالرزاق بن همام الصنعاني | مصنف عبدالرزاق |
| ۱۲. نُعيم بن حماد | كتاب الفتن |
| ۱۳. الحافظ ابو نعيم الاصبهاني | كتاب المهدي ، حلية الاولياء |
| ۱۴. ابو القاسم سليمان بن احمد الطبراني | المعجم الكبير ، الاوسط ، الصغير ومسند الشاميين |
| ۱۵. الدارقطني | الافراد |
| ۱٦. الباوردي | معرفة الصحابة |

| | |
|---|---|
| ۱۷. ابو يعلیٰ الموصلي | مسند ابي يعلیٰ |
| ۱۸. البزار | مسند البزار |
| ۱۹. الحارث بن ابي اسامه | مسند الحارث |
| ۲۰. الخطيب البغدادي | المتفق والمفترق وتلخيص المتشابه |
| ۲۱. ابن عساكر | تاريخ ابن عساكر |
| ۲۲. ابن منده | تاريخ اصبهان و (الايمان) |
| ۲۳. معمر بن راشد | الجامع |
| ۲۴. الهيثم بن كليب الشاشي | المسند |
| ۲۵. ابوالحسن الحربي | الحربيات |
| ۲۶. ابن جرير | تهذيب الاثار |
| ۲۷. ابو بكر المقري | المعجم |
| ۲۸. ابو عمرو الداني | سنن الداني |
| ۲۹. ابو غنم الكوفي | كتاب الفتن |
| ۳۰. ابو شجاع الشيرويه الديلمي | مسند الفردوس |
| ۳۱. ابن الجوزي | التاريخ |
| ۳۲. ابوالحسن بن المنادي | كتاب الملاحم |
| ۳۳. ابوبكراحمدبن حسين البيهقي | دلائل النبوة |
| ۳۴. يحيیٰ بن عبدالحميد الحماني | المسند |
| ۳۵. الروياني | المسند |
| ۳۶. ابن سعد | طبقات ابن سعد |
| ۳۷. ابن خزيمه | .......... |
| ۳۸. الحسن بن سفيان | .......... |
| ۳۹. عمر بن شبة | ................ |
| ۴۰. ابو عوانة | المسند [۱] |

۱- المهدي: لعادل الذكي: ۳۸ – ۴۰.

**۲- د مهدي د احاديثو مقبوليت:**

ټول اسلامي امت د مهدي اړوند احاديث قبول کړي دي، علامه مناوي رحمه الله د جامع صغير په شرح (فيض القدير) کې فرمايي:

اخبار المهدي كثيرة شهيرة افردها غير واحد في التاليف الخ.

ژباړه: د مهدي اړوند ډېر احاديث نقل شوي دي، همدارنگه مشهور هم دي، تر دې چې په دې اړه جلا او مستقل کتابونه ليکل شوي.[۱]

په دې اړه ځينې کتابونه او د ليکوالانو نومونه په لاندې ډول دي

| د کتاب نوم | د ليکوال نوم |
|---|---|
| ۱.العرف الوردي في اخبارالمهدي | الحافظ جلال الدين سيوطي |
| ۲. الفتن والملاحم | الحافظ عماد الدين ابن كثير |
| ۳. القول المختصر في علامات المهدي المنتظر | الفقيه ابن حجر الهيثمي المكي رحمه الله |
| ۴. ارتقاء الغُرَف | الحافظ السخاوي |
| ۵. البرهان في علامات مهدي اخر الزمان | علي المتقي الهندي د كنز العمال مصنف |
| ٦. المشرب الوردي في مذهب المهدي | ملا علي قاري رحمه الله |
| ۷. فوائد الفِكَر في ظهور المهدي المنتظَر | مرعي بن يوسف الحنبلي |
| ۸. التوضيح في تواتر ما جاء في المهدي المنتظر والدجال والمسيح | القاضي محمد بن علي الشوكاني رحمه الله |
| ۹. الاحاديث القاضية بخروج المهدي | محمد بن اسماعيل الامير اليماني رحمه الله [۲] |

دا د څو مشهورو ليکوالانو پخواني تصنيفات دي، په دې زمانه کې په دې اړه ډېر کتابونه ليکل شوي او چاپ شوي دي.

---

۱- فيض القدير شرح الجامع الصغير : ٦/ ۲۷۹.

۲- المهدي لعادل الدكي ۴۱ – ۴۳.

### ۳- د مهدي د نوم صراحت:

تقريبا له نوي (۹۰) څخه زيات مرفوع احاديث د مهدي په اړه نقل شوي دي، چې په دې کې دېرشو (۳۰) احاديثو کې د مهدي نوم په صراحت سره ذکر شوی دی، سربېره پر دې د صحابه کرامو اثار او د تابعينو اقوال هم شته.

**يادونه:** که څه هم په ځينو احاديثو کې د مهدي نوم نه دی ذکر شوی، خو بيا هم د محدثينو په نزد مشهوره قاعده دا ده، چې که د يوې پېښې په اړه مختلف احاديث نقل شوي وي، خو ځينې په کې مجمل او ځينې په کې مفصل يا تفصيلي وي، نو مجمل هم د مفصل په شان حسابېږي.

### ۴- د مهدي د احاديثو راويان:

له صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعينو څخه د مهدي په اړه تقريبا پنځه ويشت (۲۵) احاديث نقل شوي دي، چې په دوی کې عثمان، علي، عبدالله بن مسعود، عبدالله بن عباس، عبدالله بن عمر، ابوهريره، طلحه، انس بن مالک، عبدالرحمن بن عوف، ابو سعيد خدري، ام سلمه او ام حبيبه رضي الله عنهم شامل دي.

### ۵- په صحاح سته او نورو کتابونو کې د مهدي اړوند احاديث:

په صحاح سته کې د مهدي په اړه امام ترمذي، امام ابو داود او امام ابن ماجه رحمهم الله په خپلو کتابونو کې د مهدي تر عنوان لاندې مستقل تراجم ليکلي دي.

سرېبېره پر دې امام احمد، امام بزار، ابن ابي شيبة، حاكم، طبراني، ابو يعلىٰ موصلي، امام عبدالرزاق بن همام، نعيم بن حماد (د امام بخاري استاد)، حافظ نور الدين علي بن ابي بكر الهيثمي رحمهم الله او علامه علاء الدين علي المتقي په (كنز العمال) كې د مهدي په اړه مستقل بحث كړى دى.

همدارنګه حافظ ابن تيميه رحمه الله په (منهاج السنة) او حافظ ذهبي رحمه الله په (مختصر منهاج السنة) كې ليكلي دي:

الاحاديث التي تحتج بها على خروج المهدي صحيحة، رواها احمد و ابوداود والترمذي.[1]

ژباړه: له كومو احاديثو څخه چې د مهدي د ظهور او راڅرګندېدو استدلال شوى دى، هغه صحيح دي، امام احمد، امام ابوداود او امام ترمذي رحمهم الله روايت كړي دي.[2]

**۶- په بخاري او مسلم كې د مهدي د راڅرګندېدو يادونه:**

**په صحيحينو كې هم د مهدي يادونه په واضحه توګه شوې ده:**

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَيْفَ اَنْتُمْ إِذْ نَزَلَ ابْن مَرْيَم فِيْكُمْ وَ إِمَامُكُمْ مِنْكُمْ.[3]

ژباړه: له ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى هغه وايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په هغه وخت كې به ستاسو څه حال

۱- مختصر منهاج السنة : ۵۶۲.
۲- ترجمان السنة : ۴/ ۳۷۸.
۳- صحيح البخاري : ۱/ ۴۹۰. تابعه عقيل والاوزاعي.

وي، چې كله د مريمې عليها السلام زوى عيسىٰ عليه السلام ستاسو په منځ كې راكوز شي، په داسې حال كې چې ستاسو امام به ستاسو له ډلې څخه وي (يعنې مهدي).

**د حديث تحقيق:**

د (وَ إِمَامُكُمْ مِنْكُمْ) په اړه علامه ابن حجر عسقلاني رحمه الله ليكي:

وقال أبو الحسن الخسعي الابري في مناقب الشافعي: تواترت الأخبار بأن المهدي من هذه الأمة وأن عيسىٰ يصلى خلفه، ذكر ذلك رد للحديث الذي أخرجه إبن ماجه عن أنس رضي الله عنه، وفيه: ولا مهدي إلا عيسىٰ.[1]

ژباړه: په (وَإِمَامُكُمْ مِنْكُمْ) كې له امام څخه مهدي مراد دى، چې له همدې امت څخه به وي او عيسى عليه السلام به (په يو لمانځه كې) د هغه مقتدي وي.

علامه بدرالدين عيني رحمه الله هم په (عمدة القاري شرح بخاري) كې له دې څخه همدا مفهوم اخيستى دى.[2]

د دې يو متابع روايت د جابر بن عبدالله رضي الله عنه له لارې په مسلم كې ذكر شوى دى، چې الفاظ يې دا دي:

فَيَقُوْلُ اَمِيْرُهُمْ : تَعَالَ! صَلِّ لَنَا. الخ

---

۱- فتح الباري: ٦/ ٦١١.

۲- عمدة القاري شرح بخاري: ١٦/ ٤٠.

د دې حديث په ضمن کې د مسلم شارح علامه شبير احمد عثماني رحمه الله وايي:

اَمِيْرُهُمْ هُوَ إِمَامُ الْمُسْلِمِيْنَ الْمِهْدِي الْمَوْعُوْد الْمَسْعُوْد.[۱]

ژباړه: له اَمِيْرُهُمْ څخه مهدي مراد دی، چې د مسلمانانو امام به وي.

همدارنګه ابو عبد الله محمد بن خلفة الوشتاتي الابي المالكي رحمه الله د مسلم شریف په شرح (إكمالُ إكمالِ المعلم) کې او ابو عبدالله محمد بن محمد بن يوسف السنوسي الحسني په خپله شرح (مكملُ إكمالِ الإكمال) کې د دې تائيد کړی دی.[۲]

همدارنګه مصنف عبدالرزاق په یو مقطوع روایت سره د دې خبرې تاييد کړی دی، چې له (وَإِمَامُكُمْ مِنْكُمْ) څخه مهدي مراد دی.

اخبرنا عبدالرزاق، عن معمر قال: كان ابن سيرين يرىٰ انه المهدي الذي يصلى وراءه عيسى عليه السلام.[۳]

ژباړه: ابن سيرين رحمه الله داسې فکر کاوه، چې هغه يوازې مهدي دی، چې عيسىٰ عليه السلام به هغه پسې لمونځ وکړي.

ملا علي قاري رحمه الله وايي:

و إمامكم منكم أي من أهل دينكم، وقيل من قريش وهوالمهديُّ.[۱]

---

۱- فتح الملهم : ۱/ ۳۰۳.

۲- مكمل اكمال الاكمال : ۱/ ۲۶۸.

۳- مصنف عبدالرزاق : ۱۱/ ۳۹۹.

ژباړه: له مِنْكُمْ څخه مراد خو يا د دين يووالى دى يا ترې دا مراد دى، چې هغه به قريشي وي او مراد ترې مهدي دى.

علامه شاه انور شاه كشميري رحمه الله د دې حديث په شرح كې ليكي: والمتبادر منه (من لفظ وامامكم) الامام المهدي.[۲]

ژباړه: هغه خبره چې انسان پرې ډېر ژر پوهېږي، دا ده چې د (امامكم) له لفظ څخه مراد مهدي دى.

په بل حديث كې داسې وايي:

عن ابي سعيد رضي الله عنه، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من خلفاءكم خليفة يحثوا المال حثيا ولا يعد عددا.[۳]

ژباړه: له ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دى، هغه وايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ((ستاسو په خليفه گانو كې به يو خليفه داسې وي، چې پر خلكو به په لپو لپو بې شمېره مالونه وېشي)).

عن ابي سعيد وجابر رضي الله عنهما قالا: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: يكون في آخر الزمان خليفة يقسم المال ولا يعده.[۴]

---

۱- مرقاة المفاتيح : ۱۰/ ۲۳۲.

۲- فيض الباري : ۴/ ۴۵.

۳- مسلم : ۲/ ۳۹۵.

٤- مسلم : ۲/ ۳۹۵.

ژباړه: له ابوسعيد او جابر رضي الله عنهما څخه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ((په اخره زمانه کې به يو خليفه داسې وي، چې بې شمېره مالونه به وېشي)).

**په حديث کې مبهمې پېښې د مهدي زمانې پورې تړلې دي:**

همدارنګه په صحيح مسلم کې چې کومې مبهمې او ګونګې پېښې ذکر شوي دي، که په نورو احاديثو کې دغه پېښې د مهدي په زمانې پورې تړلې ثابتې شوې، نو دا به غوره خبره وي، چې د صحيح مسلم په حديث کې چې کوم جنګونه ذکر شوي دي، هغه به د مهدي زمانې پورې تړلي وي. غالبا په همدې اساس د محدثينو ځينې مبهم حديثونه د مهدي په حق کې ګڼلې دي او په هماغې باب کې يې ذکر کړي هم دي، لکه څنګه چې امام ابو داود رحمه الله د دولسو خليفه ګانو حديث د مهدي په باب کې ذکر کړی دی او دې ته يې هم اشاره کړې، چې دغه مهدي به د دې لړۍ دولسم خليفه وي.[1]

**له امير څخه مهدي مراد دی:**

عن جابر بن عبد الله رضي الله عنه، سمعت النبي صلى الله عليه وسلم يقول: لا تزال طائفة من امتي يقاتلون على الحق ظاهرين الى يوم القيامة؛ قال: فينزل عيسى بن مريم عليه السلام فيقول

۱- ترجمان السنة : ۴/ ۳۷۸ - ۳۷۹.

اميرهم: تعال! صل لنا، فيقول: لا! ان بعضكم على بعض امراء، تكرمة الله هذه الامة.[1]

ژباړه: له جابر بن عبدالله رضي الله عنه څخه روايت دی، وايي چې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه مې واورېده، چې ويې فرمايل: «زما په امت کې به يوه ډله تر قيامته پورې په حق ولاړه وي، بيا به عيسیٰ بن مريم [عليهما السلام] راکوز شي، نو امير به ورته ووايي: راشه او د لمانځه امامتي راته وکړه، نو عيسیٰ عليه السلام به ورته وفرمايي: نه! په تاسو ځينې په نورو اميران دي، دا پر دې امت د الله تعالی فضل دی».

ځينې کسان د مهدي اړوند حديثونه له دريو سببونو څخه نه مني.

۱. وايي چې په صحيح او ضعيفو روايتونو کې تناقض او ټکر شته. په دې اړه مو مخکې تفصيلي خبره کړې ده او ان شاء الله وروسته به يې هم ځای پر ځای د تعارض حل وړاندې. هسې هم د روايتونو تر منځ تعارض يو نظري او اجتهادي مسئله ده، چې په دې اساس مهمه عقيده باطلول نااشنا خبره ده.

۲. ځينې علماوو په دې وجه له دې څخه انکار کړی دی، چې د پرو فرېبناکو کسانو وخت په وخت د مهدي کېدو (مهدويت) دعوه کړې ده، خو دا پرېکړه هم نامناسبه ده، ځکه چې د نبوت له دروغجنې دعوې سره د نبوت عقيده (نعوذبالله) نه باطلېږي، همدارنګه که د

---

۱- مسلم: ۱/ ۸۷.

مهدويت په اړه دېرې دعوې هم وشي، بيا هم ورسره دا عقيده بې اساسه كېږي نه.

۳. ځينې كسان ترې له دې امله انكار كوي، چې د مهدي په تمه كېدل په خلكو كې سستي او ناراستي پيدا كوي، خلک د ديني چارو د ترسره كولو پر ځاى خپل ټول صلاحيت او ورتيا په انتظار كې ضايع كوي. ښكاره دې وي چې دا عقيده هم د مهدويت سپېڅلې عقيده نه شي باطلولى او نامناسبه خبره هم ده.

**مهدي او عيسىٰ عليه السلام دوه بېل بېل شخصيتونه دي.**

په دې اړه لاندې حديثونو ته پام وكړئ:

۱. لن تهلك امة انا في اولها وعيسىٰ ابن مريم في آخرها والمهدي في اوسطها.[۱]

ژباړه: هغه امت به هېڅكله هم هلاک نه شي، چې په سر كې يې زه يم، په اخر كې يې عيسىٰ بن مريم (عليهما السلام) وي او په منځ كې يې مهدي وي.

۲. منا الذي يصلى عيسىٰ ابن مريم خلفه.[۲]

ژباړه: هغه شخص به زموږ له ډلې څخه وي، چې عيسىٰ بن مريم (عليهما السلام) يې شاته لمونځ وكړي.

۳. عن عبد الله بن عمر رضي الله عنهما قال: المهدي الذي ينزل عليه عيسىٰ ابن مريم ويصلي خلفه عيسىٰ عليه السلام.[۱]

---

۱- كنز العمال : ۱۳ / ۲۶٦، رقم : ۳۸٦۷۱، ابو نعيم في اخبار المهدي عن ابن عباس رضي الله عنهما.

۲- كنز العمال : ۱۴ / ۲۶٦، رقم : ۳۸٦۷۳، ابو نعيم في اخبار المهدي عن ابي سعيد رضي الله عنه.

ژباړه: له عبدالله بن عمر (رضي الله عنهما) څخه روايت دی، هغه وايي: چې عيسیٰ عليه السلام به له مهدي څخه وروسته نازل شي او عيسیٰ عليه السلام به (يو) لمونځ هغه پسې وکړي.

۴. لا تزال طائفة من امتي تقاتل على الحق حتى ينزل عيسى ابن مريم عند طلوع الفجر ببيت المقدس، ينزل على المهدي فيقال له: تقدم يا نبي الله! فصل لنا. فيقول: ان هذه الامة امين، بعضهم على بعض لكرامتهم على الله عز وجل.[۲]

ژباړه: زما د امت څخه به يوه ډله همېشه د حق لپاره مقابله کوي، تر دې چې عيسیٰ عليه السلام به د مهدي په موجوديت کې د لمر راختلو په وخت په بيت المقدس کې را کوز شي. له هغه څخه به غوښتنه وشي، چې د لمانځه لپاره امامتي وکړي، خو هغه به ورته وفرمايي: دا امت د الله تعالی په نزد د عزت له مخې د يو بل لپاره امير دی.

۵. يلتفت المهدي وقد نزل عيسى ابن مريم كانما يقطر من شعره الماء، فيقول المهدي: تقدم صل بالناس!، فيقول عيسىٰ: انما اقيمت الصلوة لك، فيصلي خلف رجل من ولدي.[۳]

---

۱- اخرجه نعيم بن حماد : ۲٦۴ ، رقم: ۱۰۴۲.

۲- اخرجه ابو عمرو الداني في سننه عن جابر بن عبدالله رضي الله عنه ، : ۲۴۰ ، رقم : ٦٨٦. والحاوي: ۲/ ۸۳.

۳- اخرجه ابو عمرو الداني في سننه عن حذيفة رضي الله عنه في سياق حديث طويل في باب ما روي في الوقيعة اللتي تكون بالزوراء ...: ۲۰۲، رقم: ۵۹٦.

ژباړه: مهدي به عیسیٰ بن مریم ته وګوري او ورته به وايي چې خلکو ته د لمانځه امامتي وکړي. په دې وخت کې به عیسیٰ علیه السلام له اسمان څخه راکوز شوی وي، په داسې حال کې چې له ویښتانو څخه به یې اوبه څاځي. عیسیٰ علیه السلام به وفرمايي: اقامت ستاسو لپاره شوی دی (یعنې تاسو خپله امامتي وکړئ)، لنډه دا چې زما د اولاد څخه به د یوشخص په اقتدا کې (عیسیٰ علیه السلام) لمونځ اداء کړي.

عن جابر رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ينزل عيسىٰ ابن مريم فيقول اميرهم المهدي: تعال! صل بنا. فيقول: وان بعضكم على بعض امراء، تكرمة الله لهذه الامة.[1]

ژباړه: له جابر رضي الله عنه څخه روایت دی هغه وايي: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ((عیسیٰ علیه السلام به له اسمان څخه راکوز شي، بیا به د مسلمانانو مشر مهدي ورته ووايي: تاسو موږ ته د لمانځه امامتي وکړئ. هغه به ورته وفرمايي: په تاسو کې ځینې د ځینو نورو امیران دي او دا د الله تعالی په نزد د دې امت عزت دی)).

## مهدي او عیسیٰ علیه السلام یو کس ګڼل ګمراهي ده:

لنډه دا چې عیسیٰ علیه السلام او مهدي دوه بېل بېل شخصیتونه دي، نو څوک چې مهدي او عیسیٰ علیه السلام یو تن ګڼي او په نتیجه کې له مهدي څخه انکار کوي، نو هغه د ګمراهۍ په

---

۱- اخرجه السیوطي في الحاوي : ۲/ ۶۴، عن ابي نُعیم.

لاره روان دی، په ځانګړې توګه قادیانیان عیسیٰ علیه السلام او مهدي یو کس ګڼي. دغه ګمراه ډله د دې ایت مصداق ګرځي:

﴿ظُلُمَٰتٌ بَعۡضُهَا فَوۡقَ بَعۡضٍ إِذَآ أَخۡرَجَ يَدَهُۥ لَمۡ يَكَدۡ يَرَىٰهَا﴾ (النور: ۴۰)

ژباړه: په تروږمی باندې تروږمی مسلطه ده. كه (پرېوتی) انسان خپل لاس وباسي، نو هغه هم ونه شي لیدلی.

د مهدي د راڅرګندېدو عقیده:

(۱) په هر مسلمان لازم او واجب دي، چې د مهدي په ظهور عقیده ولري: وبالجملة فالتصديق بخروجه (ای المهدي) واجب.[۱]

همدارنګه په شرح عقیدة السفاريني کې راغلي:

فالايمان بخروج المهدي واجب، كما هو مقرر عند اهل العلم ومدون في عقائد اهل السنة والجماعة.[۲]

ژباړه: د مهدي پر راڅرګندېدو ایمان واجب دی، دا خبره نه علماوو څخه ثابته شوې هم ده او د اهل سنت والجماعة د عقایدو په کتابونو کې هم لیکل شوې ده.

همدارنګه محمد بن سلیمان الحلبي رحمه الله هم وايي:

واعلم انه يجب الايمان بنزول عيسىٰ عليه السلام وكذا بخروج المهدي.[۳]

---

۱- نبراس: ۳۰۵، مطبع تهانوي ديوبند.

۲- شرح عقيدة السفاريني: ۲/ ۸۰.

۳- نخبة اللالي لشرح بدء الامالي: ۷۱.

ژباړه: پوه شه چې [له اسمان څخه] د عيسیٰ عليه السلام پر راكوزېدو او د مهدي پر راوتلو ايمان لرل واجب دي.

شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله وايي: ((دا يقيني خبره ده چې مهدي به قيامت ته نږدې راشي، مهدي د الله تعالی او د هغه د رسول په نزد حق دی او رسول الله [صلی الله عليه وسلم] يې د خلافت وړاندوينه هم کړې ده)).

همدارنگه زياتوي: ((د مهدي د خلافت وخت به راشي، کومې چارې چې خليفه پورې تړلې وي، په هغې کې د مهدي پيروي واجبه ده)).[1]

(۲) د مهدي د راڅرگندېدو عقيده د اهل سنت والجماعة په نزد منل شوې عقيده ده

مولوي بدر عالم ميرټي رحمه الله په ترجمان السنة کې نقل کړي دي چې د (عقيده سفاريني) شارح د مهدي د راتگ په اړه د تواتر دعوه کړې ده او دا يې د اهل سنت والجماعة په عقيده کې شمېرلې ده، هغه ليکي:

((د مهدي د راڅرگندېدو په اړه دومره حديثونه نقل شوي دي، چې د معنوي تواتر حد ته رسېدلي دي او دا خبره د اهل سنت والجماعة په منځ کې دومره مشهوره شوې ده، چې دوی يې خپله عقيده هم گڼي. ابو نعيم، ابو داود، ترمذي، نسايي او داسې نورو له صحابه کرامو او تابعينو څخه په دې اړه بې شمېره روايتونه نقل کړي دي، که دا ټول حديثونه راجمع شي، نو د مهدي د راتگ خبره ثبوت ته رسوي؛

---

۱- ازالة الخفاء: ۱/ ۲۶.

د اهل سنت والجماعة د عقيدې او د دوی د گومان له پلوه پر دې خبره عقيده لرل ضروري دي)).[١]

(٣) له احاديثو څخه داسې معلومېږي، چې د مهدي راتگ قطعي او لازمي خبره ده، په دې کې هيڅ شک نه شته.

(٤) د رسول الله صلى الله عليه وسلم له سپېڅلي زمانې راهيسې تر ننه پورې سلفو او وروستنيو خلكو، مفسرينو، متكلمينو او د امت جمهورو علماوو په پوره پابندۍ سره په خپلو كتابونو كې د مهدي د راڅرگندېدو په اړه څرگندونې كړې دي، چې په دې لړ كې عبدالرحمن مباركپوري رحمه الله ليكي:

واعلم ان المشهور بين الكافة من اهل الاسلام على ممر الاعصار انه لا بد في اخر الزمان من ظهور رجل من اهل البيت . . . الى انه قال: ويسمىٰ بالمهدي .[٢]

ژباړه: په هره زمانه كې د ټولو مسلمانانو په نزد دا خبره مشهوره ده، چې په اخره زمانه كې به له اهل بيتو څخه يو تن ضرور راښكاره كېږي . . . او د هغه نوم به مهدي وي.

لنډه دا چې ټول اسلامي امت له تواتر سره د مهدي راتگ مني.

(٥) علماء كرام د مهدي د راڅرگندېدو عقيده حقه گڼي.

په دې لړ كې مفتي كفايت الله دهلوي رحمه الله وايي:

---

١- شرح عقيدة السفاريني بحواله ترجمان السنة : ٣٧٧.

٢- تحفة الاحوذي : ٦/ ٤٠١ ، باب ما جاء في المهدي.

((له قيامت څخه مخکې د دجال راوتل، د مسيح او مهدي تشريف راوړل او کوم شيان چې له صحيحو روايتونو څخه ثابت شوي دي، د هغې واقع کېدل حق دي)).[۱]

مولوي محمد ادريس کاندهلوي رحمه الله ليکي: ((د اهل سنت والجماعة له عقيدو څخه يوه دا هم ده، چې په اخره زمانه کې د مهدي راڅرگندېدل حق او رښتيا دي، عقيده پرې لازمي او ضروري ده، ځکه چې له متواترو احاديثو او د امت په اجماع د مهدي د راڅرگندېدو خبره ثبوت ته رسېدلې ده، که څه هم ځينې تفصيلات يې له اخبار احاد څخه هم ثابت وي. د صحابه کرامو او تابعينو له زمانې راهيسې تر دې وخته پورې دمهدي د راڅرگندېدو په اړه په ختيځ او لوېديځ کې د مسلمانانو هرې طبقې، علماوو، عامو او خاصو خلکو په هره پېړۍ کې دا خبره رانقل کړې او راروانه ده)).[۲]

**د مهدي له راڅرگندېدو څخه د منکر حکم:**

د مهدي د راڅرگندېدو عقيده د ټولو مسلمانانو مشترکه عقيده ده، نو ځکه ترې هېڅوک هم انکار نه شي کولی، خو څوک چې له دې عقيدې انکار کوي، په اړه يې مفتي محمود گنگوهي رحمه الله ليکلي دي:

پوښتنه: ايا د مهدي د راڅرگندېدو عقيده له قران کريم او احاديثو څخه ثابته ده؟ که څوک دې ته قايله نه وي، د هغه شرعي حکم څه شی دی؟

---

۱- جواهر الايمان : ۸.

۲- عقائد اسلام: ۱/ ۶۳.

ځواب: د الله تعالى د خليفه مهدي په اړه په ابوداود كې تفصيل ذكر شوى دى، د هغه علامې، له هغه سره بيعت او كارنامې ټولې يې ذكر شوي دي، څوک چې هغه ته قايل نه وي، نو هغه احاديثو ته قايل نه دى، د دې شخص بايد اصلاح وشي، څو نېغې لارې ته بېرته راوګرځي.[1]

همدارنګه مولوي ابو محمد عبدالحق حقاني رحمه الله ليکي:

((د اهل سنت له عقايدو څخه دا هم ده، چې په اخره زمانه کې به مهدي راڅرګند شي، کافران به مغلوب کړي او اسلام به پياوړى کړي. نور تفصيل د خبر احاد په وسيله ثابت شوى دى، هغه هم داسې چې د څو حديثونو ټوټې سره يو ځاى شوي او د هغې له قرينې څخه دا خبره استنباط شوې ده. که څوک پر دې خبرو ايمان ونه لري، پر دې د اسلام له دايرې څخه نه وځي، نو دا بېله خبره ده، خو هر څه حق دي)).[2]

**صحابه كرامو ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم زېرى:**

عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه قال: خشينا ان يكون بعد نبينا حدث، فسئلنا نبينا صلى الله عليه وسلم فقال: ان في امتي المهدي يخرج يعيش خمسا او سبعا او تسعا، (زيد الشاك) قال: قلنا: وما ذالك؟ قال: سنين. قال: فيجيء اليه الرجل فيقول :

---

۱- فتاوىٰ محموديه : ۱/ ۱۱۱.
۲- عقايد اسلام : ۱۸۵.

يامهدي! اعطني اعطني . قال : فيحثى له في ثوبه ما استطاع ان يحمله.[1]

ژباړه: له ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: موږ وېرېدو چې زموږ له پيغمبر (صلی الله عليه وسلم) څخه وروسته به سختې پېښې رامنځ ته شي، په دې اړه مو له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه، نو هغه راته وفرمايل: ((زما په امت کې به مهدي راڅرگند شي، چې تر پنځو، اوو يا نهو پورې به ژوندی وي)). (د حديث له يو راوي زيد څخه په عددونو کې شک واقع شوی دی). زيد رضي الله عنه وايي: موږ وويل: ای د الله رسوله! دا د څه شي عدد او شمېر دی؟ هغه وفرمايل: ((د کلونو)). بيا يې وفرمايل: ((هغه ته به يو سړی راشي او وبه وايي: ای مهدي ای مهدي! ما ته څه شی راکړه، ماته څه شی راکړه)). رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ((هغه به ورته په جامو کې (دومره دينار او درهم) په لپو لپو واچوي، چې پورته کولی به يې نه شي)).

مفتي رشيد احمد گنگوهي رحمه الله د دې حديث په رڼا کې وايي:

((کله چې رسول الله [صلی الله عليه وسلم] د صحابه کرامو په وړاندې د خير درې زمانې يادې کړې، نو صحابه کرام پوه شول چې له دوی څخه وروسته به فتنې او حادثې راڅرگندې شي او له خيرالقرون څخه وروسته به داسې زمانه راشي، چې يوه ورځ به له بلې بدتره وي.

1- ترمذي، باب ما جاء في المهدي: ۲/ ۴۷، هذا حديث صحيح.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم له دې خبرې څخه صحابه کرامو سره د دې امت غم و، چې امت به د دنیا په مال ومتاع کې مصروف وي او که مرګ پرې ناڅاپي مېلمه شي، نو په دې وخت کې به د دوی څه حال وي؟ همدارنګه د فتنې په هغه زمانه کې به دغه ویده امت څوک راویښ کړي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې لپاره چې د دوی دغه فکر لرې کړي، نو د مهدي د راڅرګندېدو زېری یې ورکړ، څو صحابه کرام اطمینان ترلاسه کړي او دا یې ورته په ډاګه کړه چې په هغه سخته زمانه کې به هم د دین غمخواران پیدا شي. د دین د غمخوارانو او د مهدي په شان د خلکو راڅرګندېدل د دې خبرې دلیل دی چې په هغه له فتنې ډکه زمانه کې هم د خیر ماده شته او د دیني زده کړې او خیراوي لړۍ به دوام لري».[1]

همدارنګه نومورې د مهدي د ژوند په اړه حدیث چې په هغې کې د پنځو، اوو او نهو عدد ذکر شوی دی، په اړه یو تطبیق راویستلی دی او لیکي:

فيعيش خمسا او سبعا الخ، والتوفيق بين هذه الروايات ان تجهيزه الجيش في خمس سنين، ثم محاربته مع الكفار سنتان، ثم يعيش بعد ذلك سنتين، فتلك تسعة باسرها، وعلى هذا فالترديد في هذه الروايات ليس بشك من الراوي، بل هو تنويع في الرواية. (ايضا)

---

۱- الكوكب الدري مع هامش : ۲/ ۵۷.

ژباړه: په لومړيو پنځو كلونو كې به لښكر برابر شي، بيا به يې دوه كاله له كافرانو سره جنګ وي او بيا اخري دوه كلونه به يې په حكومت كولو كې تېر شي، په دې ترتيب د حديث په الفاظو كې څندان ټكر نه راځي.

**د مهدي ديني، دنيوي او اخروي مقام:**

**۱- په حديث شريف كې راغلي دي:**

لن تهلك امة انا في اولها وعيسىٰ ابن مريم في آخرها والمهدي في اوسطها.[۱]

ژباړه: هغه امت به هېڅكله هم هلاک نه شي، چې په سر كې يې زه يم، په اخر كې يې عيسىٰ بن مريم عليهما السلام وي او په منځ كې يې مهدي وي.

**۲- نوموړی (مهدي) به اخري راشد خليفه وي.**

**۳- نوموړی به اخري مجدد وي.**

**۴- نوموړی به د اولياوو په لوړه درجه كې وي.**

**۵- په حديث كې مهدي د جنت له سردارانو څخه يو سردار ښودل شوی:**

عن انس بن مالك رضي الله عنه قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: نحن ولد عبدالمطلب سادة اهل الجنة، انا وحمزة وعلي وجعفر والحسن والحسين والمهدي.[۲]

---

۱- كنز العمال : ۱۴/ ۲۶۶، رقم : ۳۸۶۷۱، ابو نعيم في اخبار المهدي عن ابن عباس رضي الله عنهما.

۲- ابن ماجه، باب خروج المهدي: ۳۰۰.

ژباړه: له انس بن مالك رضي الله عنه څخه روايت دی، وايي چې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه مې واورېدل چې فرمايل يې «موږ د عبدالمطلب اولاده يعنې زه، حمزه، علي، جعفر، حسن، حسين او مهدي به د جنت سرداران يو».

دا روايت د ابن ماجه په موضوعاتو كې شامل نه دی، بلكې د دې متابعات او شواهد موجود دي.

۶- د الله تعالی له لوري مهدي ته لوی روحاني قوت وركړل شوی دی.

۷- د مهدي رتبه له خلفاء راشدينو څخه وروسته ده.

په دې لړ كې مولوي محمد ادريس كاندهلوي رحمه الله ليكلي دي:

«مهدي د محمدي امت اخري راشد خليفه دی، چې د جمهورو علماوو په نزد يې په دې امت كې له ابو بكر او عمر او نورو خلفاء راشدينو څخه وروسته درجه ده».(۱)

۸- د اسمان او ځمكې ټول مخلوق به ترې خوشحاله وي.

۹- كله چې عيسیٰ عليه السلام له اسمان څخه راكوز شي، نو لومړی لمونځ به د مهدي په امامتۍ كې وكړي او دا به د محمدي امت عزت وي (ددې امت غوره شخص هغه څوک دی، چې يو پيغمبر د هغه تر شا لمونځ ادا كوي).

۱۰- مهدي نه نبي دی او نه رسول، نه به پرې وحې نازلېږي، نه به د نبوت دعوه كوي او نه به يې څوک پيغمبر ګڼي، چې ايمان پرې راوړي.

---

۱- القول المحكم في نزول عيسیٰ بن مريم، معروف به نزول عيسیٰ وظهور مهدي: ۳۵.

له دې څخه معلومه شوه، چې څوک له مهدي کېدو سره د پیغمبرۍ دعوه هم کوي، نو هغه دروغجن دی (همدارنګه هغه خلک هم دروغجن دي، چې تر ننه پورې یې د مهدویت دعوه کړې).

۱۱- د عیسیٰ علیه السلام تر نازلېدو پورې به مهدي د مسلمانانو خلیفه او حاکم وي.

۱۲- عیسیٰ علیه السلام به له راکوزېدو وروسته د پاچا په درجه کې، مهدي به د وزیر په درجه کې وي او دواړه به په خپل منځ کې مشورې کوي.

په دې اړه مفتي محمد یوسف لدهیانوي رحمه الله وایي:

((عیسیٰ علیه السلام به له اسمان څخه د خلیفه په شکل راکوز شي او دا حیثیت د مسلمانانو عقیدې پورې تړلې خبره ده، کله چې هغه له اسمان څخه راکوز شي، نو مهدي به ورته د خلافت چارې وسپاري او د هغه په مشاورینو کې به شامل شي، له دې وروسته به ټول مسلمانان د هغه منونکي شي، له دې سره به نه د کومې دعوې ضرورت وي او نه د رسمي ټولټاکنو)). [۱]

**تر راڅرګندېدو پورې د مهدي پټ ساتل:**

د حدیثو له مطالعې څخه دا خبره معلومېږي، چې د مهدي راڅرګندېدل به تر یوې مودې پورې پټ پاتې وي، کله چې یې د راښکاره کېدو وخت نږدې شي، نو الله (تعالی) به یې خلکو ته یو ناڅاپه راښکاره کړي. ناآشنا خبره خو دا ده چې تر راڅرګندېدو پورې

---

۱- المهدي والمسیح: ۲۱

به مهدي له خپلې رتبې او مقام څخه ناخبره وي. په دې هكله له علي رضي الله عنه څخه يو روايت نقل شوى:

عن علي رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: المهدي منا اهل البيت يصلحه الله في ليلة.[1]

ژباړه: له علي رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: «مهدي به زموږ له اهل بيتو څخه وي او الله تعالى به دا صلاحيت په يوه شپه كې وركړي».

د دې حديث په شرحه كې شيخ عبدالغني دهلوي رحمه الله ليكي: اي يصلحه الله في ليلة اي يصلحه للامارة والخلافة بغاءة وبغتة.[2]

ژباړه: الله تعالى به ورته په يوه شپه كې په ناڅاپي توګه د امارت او خلافت دغه وړتيا وركړي.

علامه ابن كثير رحمه الله د دې حديث په شرح كې وايي:

أَيْ يَتُوْبُ اللهُ عَلَيْهِ وَيُوَفِّقُهُ وَيُلْهِمُهُ وَيُرْشِدُهُ بَعْدَ أَنْ لَمْ يَكُنْ كَذٰلِكَ.

ژباړه: الله تعالى به يې د خصوصي فضل او توفيق څخه برخمن كړي، هغه ته به (د دې حقيقت) الهام وكړي او له هغه مقام سره به يې اشنا كړي، چې مخكې ترې ناخبره و.[3]

د مهدي ټول كمالات او خصوصيتونه به تر راښكاره كېدو (ظهور) پورې پټ وي، نو ځكه به يې خلك له راڅرګندېدو مخكې نه

---

۱- ابن ماجه، باب خروج المهدي: ۲/ ۳۱۰، و مسند احمد: ۱/ ۱۰٦.

۲- انجاح الحاجة على هامش ابن ماجه.

۳- النهاية في الفتن والملاحم: ۱/ ۳۱.

پېژني او کله چې يې د ظهور وخت راشي، نو الله تعالى به په هغه کې د خپل کامل قدرت له مخې په يوه شپه کې د امارت او خلافت صلاحيت او وړتيا واچوي، چې له دې سره به يې مهدويت داسې ښکاره او ځلانده ښکاري، چې يوادنى شخص به يې هم په اسانۍ سره پېژندلى شي. خلک به پرې ځکه خوشحاله وي،چې د زياتومصيبتونو څخه به ستړي شوي وي او دا به يې د زخم لپاره د مرهم پټۍ وي.

مولوي بدر عالم ميرټي مهاجر مدني رحمه الله ليکي:

((له دې سره يو ژور حقيقت هم حل کېږي او هغه داسې چې په دې اړه د کمزوري ايمان خاوندان يوه پوښتنه کوي، چې مهدي خو د لوړ شهرت خاوند دی، نو بيا ولې له عامو او خاصو خلکو څخه پټ پاتې دی؟ ځکه چې د مصيبتونو په وخت کې د هغه راڅرګندېدو ته په تمه کېدل نامعقوله ښکاري. خو دلته دا پوښتنه د حديث دې ټوټې (و يصلحه الله في ليلة) حل کړه. که دغه صفتونه په هر ځومره خلکو کې هم وي، خو باطني وړتيا او روحانيت يې د الله تعالى په خوښه پټ ساتل شوی دی، تر دې چې کله يې د ظهور وخت رارسيږي، نو په يوه شپه کې به يې الله تعالى دغه پټ صلاحيتونه راڅرګند کړي. دا به هم د الله تعالى يو حکمت وي، چې تر راڅرګندېدو وخته پورې به يې هېڅوک هم نه پېژني او کله چې يې وخت راشي، نو د الله تعالى په قدرت سره به په کې ټول صلاحيتونه راښکاره شي، چې يو ړوند سړی به يې هم پېژني.

تاسو وګورئ چې له احاديثو څخه دجال څنګه ثابت شوی دی، خو سره له دې بيا هم د هغه له راڅرګندېدو مخکې د هغه اړوند حالات پټ ساتل شوي دي. دا چې نن سبا د فتنو زمانه ده، نو اوس د مهدي او دجال په اړه بحثونه او د هغوی په اړه انکشاف خپله يوه فتنه ده)). [1]

## مهدي به کله راڅرګندېږي؟

په احاديثو کې د مهدي د راتګ او له هغې وروسته د اسلامي امت د پرمختګ او عروج ته د رسېدو خبرونه له مخکې څخه ذکر شوي دي، خو بيا هم له دې سره داخبره معلومه نه ده، چې نوموړی به کله راڅرګندېږي، په کوم کال، کومه مياشت کې!؟

هو! دومره معلومه ده چې نوموړی په کومه زمانه کې راڅرګندېږي، په هغه وخت کې د مسلمانانو حالات معلوم دي او له هغې څخه به په ډاګه معلومېږي، چې د مهدي د راڅرګندېدو وخت نږدې شوی دی.

## د مهدي راڅرګندېدو ته نږدې د اسلامي امت عمومي حالات:

۱- ځمکه به له ظلم او ستم څخه ډکه وي.

۲- ظلم به دومره حد ته رسېدلی وي، چې خلکو ته به د پناه ځای په لاس نه ورځي.

په دې لړ کې حاکم يو حديث ذکر کړی دی:

---

۱- ترجمان السنة : ۴/ ۲۰۲ – ۲۰۵.

عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ينزل بامتي بلاء شديد من سلطانهم حتى يضيق الارض عنهم فيبعث الله رجلا من عترتي فيملأ الأرض قسطا وعدلا كما ملئت ظلما وجورا.[1]

ژباړه: زما په امت به د خپلو حاكمانو له خوا سخت مصيبتونه راشي، تر دې چې ځمكه به پرې تنګه شي، بيا به الله تعالى زما له كورنۍ څخه يو شخص مبعوث كړي [مهدي به راشي]؛ هغه به ځمكه له عدل او انصاف څخه داسې ډكه كړي، څنګه چې مخكې له ظلم او ستم څخه ډكه وه.

**۳-خلك به د يو بل پر مخ لاړې توكوي.**

عن علي رضي الله عنه قال: لا يخرج المهدي حتى يبصق بعضكم في وجه بعض.[2]

ژباړه: مهدي به تر هغې پورې راڅرګند نه شي، تر دې چې خلك د يو بل پر مخ لاړې تو نه كړي.

د مفتي نظام الدين شامزي رحمه الله د تحقيق له مخې دا حديث د اعتبار وړ دی.[3]

**۴- د الله تعالى نوم اخيستل به د قتل وړ جرم وي.**

---

۱- مستدرك للحاكم.

۲- منتخب كنز العمال: ٦/ ٣٣.

۳- عقيده ظهور مهدي: ۷۰.

اِذْ قَالَ الرَّجُلُ: اَللهُ اَللهُ، قُتِلَ.[1]

۵- په خلکو کې به اختلافات او زلزلې (یعنې د اندېښنې ورحالات) راشي.

۶- دین به زوال ومومي.

۷- فتنې به ډېرې زیاتې شي.

۸- داسې پېچلي حالات به راشي، چې مسلمانان به د نهیلۍ څخه ووایي: اوس به مهدي چېرته راشي؟ یعنې د مهدي له راتګ څخه به خلک نهیلي شوي وي.

عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: يبعث المهدي بعد أياس وحتى يقول الناس: لامهدي.[2]

ژباړه: مهدي به په داسې نهیلۍ او د نااميدۍ وخت کې راشي، چې خلک به ووايي: مهدي خو بالکل نه شته!!.

۹- د نړۍ پر مخ به شیطاني ځواکونه غالبه وي.

۱۰- د مسلمانانو په زړونو کې به کوږوالی پیدا شوی وي.

۱۱- په دنیا کې به دین او شریعت هېڅ ارزښت نه لري.

۱۲- حرام به حلال ګڼل کېږي.

۱۳- خلک به نېک کار ته بد او بد کار ته به نېک کار وايي.

پر اسلامي امت راتلونکي حالات له دې حدیث څخه هم معلومېږي:

---

۱- مستدرك للحاكم: ۴/ ۵۵۴.

۲- الحاوي: ۲/ ۷۶.

عَنْ ثَوْبَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يُوْشِكُ الْأُمَمُ أَنْ تَدَاعَى عَلَيْكُمْ كَمَا تَدَاعَى الْأَكَلَةُ إِلَى قَصْعَتِهَا»، فَقَالَ قَائِلٌ: وَمِنْ قِلَّةٍ نَحْنُ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: «بَلْ أَنْتُمْ يَوْمَئِذٍ كَثِيْرٌ، وَلٰكِنَّكُمْ غُثَاءٌ كَغُثَاءِ السَّيْلِ، وَلَيَنْزَعَنَّ اللهُ مِنْ صُدُوْرِ عَدُوِّكُمُ الْمَهَابَةَ مِنْكُمْ، وَلَيَقْذِفَنَّ اللهُ فِيْ قُلُوْبِكُمُ الْوَهْنَ»، فَقَالَ قَائِلٌ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! وَمَا الْوَهْنُ؟ قَالَ: «حُبُّ الدُّنْيَا، وَكَرَاهِيَةُ الْمَوْتِ». [١]

ژباړه: له ثوبان رضي الله عنه روایت دی هغه وایي: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ((یوه زمانه به داسې راشي، چې قومونه به نور خلک پر تاسو برید ته داسې رابلي، لکه خلک چې دسترخوان ته رابلل کېږي (او خلک له هرې خوا نه له دسترخوان څخه راتاو شي، داسې به د کافرانو ډلې هم مسلمانان راګېر کړي) )). صحابه کرامو (رضي الله عنهم) وویل: ((ای د الله رسوله! ایا موږ به په دې وخت کې لږ یو؟)). رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: ((نه! بلکې تاسو به ډېر یاستئ، خو (د دین په اعتبار) تاسو به د سېلاب د نېزوړي په شان یاستئ او د دښمن له زړونو څخه به ستاسو وېره ووځي او تاسو به د (وهن) ښکار شئ)). چا پوښتنه وکړه: ((ای د الله رسوله! وهن څه ته وایي؟)). ورته یې وفرمایل: ((له دنیا سره مینه او له مرګ څخه وېره)).

---

١- ابو داود ، ٢/ ٥٩٠، رقم الحدیث: ٤٢٩٧.

:١

# دويم فصل
# د مهدي حالات

**نوم او نسب يې:**

نوم به يې محمد وي، پلار به يې عبدالله نومېږي او د اهل بيتو يعنې بني هاشمو له قبيلې څخه به وي. نوموړى به د پلار له طرفه د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم د لور فاطمې (رضي الله عنها) د زوى حسن رضي الله عنه له اولادې څخه وي، يعنې حسني سيد او مشر به وي او د مور له طرف به د حسين رضي الله عنه له اولادې څخه وي، يعنې حسيني سيد او مشر به وي.

په اصل كې په دې اړه مختلف روايتونه نقل شوي دي، چې په ځينو كې يې حسني بولي او په ځينو نورو كې يې حسيني. امام ابو داود رحمه الله په خپل سنن كې داسې روايت ذكر كړى دى:

(۱) قَالَ أَبُو دَاوُدَ: حُدِّثْتُ عَنْ هَارُونَ بْنِ الْمُغِيرَةِ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ أَبِي قَيْسٍ، عَنْ شُعَيْبِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، وَنَظَرَ إِلَى ابْنِهِ الْحَسَنِ، فَقَالَ: «إِنَّ ابْنِي هَذَا سَيِّدٌ كَمَا سَمَّاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَسَيَخْرُجُ مِنْ صُلْبِهِ رَجُلٌ يُسَمَّى بِاسْمِ نَبِيِّكُمْ.» (۱)

---

۱- ابو داود: ۲/ ۵۸۹، رقم: ۴۲۹۰.

ژباړه: علي رضي الله عنه خپل زوی حسن رضي الله عنه ته وکتل او ويې فرمايل: ((زما دا زوی سردار دی، څنګه چې ورته رسول الله [صلى الله عليه وسلم] د سيد لقب ورکړی دی. د ده له نسل څخه به يو شخص پيدا شي، چې نوم به يې ستا د پيغمبر د نوم په شان وي)).

(٢) حدثنا الوليد و رشدين، عن ابن لهيعة، عن ابي قبيل، عن عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما قال: يخرج رجل من ولد الحسين من قبل المشرق، لو استقبلته الجبال لهدمها واتخذ فيها طرقا. [١]

ژباړه: عبدالله بن عمر رضي الله عنهما وايي: ((د حسين رضي الله عنه له اولاده کې به يو شخص له ختيځ څخه راپيدا شي، که بالفرض غر يې هم مخې ته خنډ شي، نو هغه به ويجاړ کړي او خپله لاره به په کې پيدا کړي)).

له پورته دواړو روايتونو څخه وروسته د نبراس نومي کتاب ليکوال کلام رانقلوو، چې د دواړو روايتونو تر منځ د تعارض دوه ځوابه يې ذکر کړي دي، نوموړي ليکلي دي:

اختلف في أن المهدي من أولاد الحسن او الحسين؟ والراجح هو الاول ، كما رواه ابو داود عن علي رضي الله عنه. [٢] و جمع بعضم بانه من صلب حسني وبطن حسنية. [٣]

---

١- اخرجه الحاكم وابن عساكر ، وكما في الحاوي : ٢/ ٦٦.

٢- حديث: ٤٢٩٠.

٣- نبراس : ٣١٦.

ژباړه: خلك په دې كې اختلاف لري، چې مهدي به د چا له اولادې څخه وي، ايا د حسن له اولادې څخه به وي او كه د حسين رضي الله عنه له اولادې څخه؟ راجح قول دا دی چې د حسن رضي الله عنه له اولادې څخه به وي، ځكه چې د دې قول په تائيد كې يو روايت هم له علي رضي الله عنه څخه نقل شوی، چې امام ابو داود روايت كړی دی. ځينو علماوو د دې دواړو اقوالو داسې تطبيق كړی دی، چې د مهدي پلار به د حسن رضي الله عنه له كورنۍ څخه او مور به يې د حسين رضي الله عنه له نسل څخه وي.

ابن قيم الجوزي رحمه الله ليكلي دي:

وفي كونه من ولد الحسن سر لطيف، وهو أن الحسن رضي الله عنه ترك الخلافة لله – فجعل الله من ولده من يقوم بالخلافة الحق، المتضمن للعدل الذي يملأ الارض. وهذه سنت الله في عباده أنه من ترك لأجله شيئا أعطاه الله أو أعطى ذريته أفضل منه.[1]

ژباړه: دا چې مهدي د حسن له اولادې څخه دی، په دې كې تااشنا نقطه دا ده، چې حسن رضي الله عنه د الله تعالى د رضا لپاره له خلافت څخه لاس واخيسته، چې په نتيجه كې به يې الله تعالى له اولادې څخه داسې شخص راپيدا كړي، چې ريښتينی خلافت به رامنځ ته كړي. هغه خلافت به داسې له انصاف څخه ډک وي، چې تولې ځمكې ته به ورسېږي. دا د الله تعالى قانون دی، چې كله يو

---

١- المنار المنيف لابن قيم الجوزية: ١٥١، وكذا قال المناوي في فيض القدير: ٦/ ٢٧٩.

بنده د الله تعالى د رضا لپاره له څه شي لاس واخلي، نو الله تعالى به ده يا د ده اولادې ته په بدل كې له هغې څخه غوره شى وركړي.

ملا علي قاري رحمه الله په خپل مشهور كتاب (المرقاة) كې ليكلي:

والأظهر أنه من جهة الاب حسني ومن جانب الام حسيني قياسا على ما وقع في ولدى ابراهيم ، وهما اسمعيل واسحق عليهما الصلوة والسلام، حيث كان انبياء بني اسرائيل كلهم من بني اسحق، وانما نبي من ذرية اسمعيل نبينا صلى الله عليه وسلم وقام مقام الكل ونعم العوض وصار خاتم الانبياء، فكذلك لما ظهرت اكثر ائمة الامة من اولاد الحسين، فناسب ان ينجبر الحسن بان اعطى له ولد يكون خاتم الاولياء، ويقوم مقام سائر الاصفياء الخ. (۱)

ژباړه: دا بالكل واضح قول دى، چې مهدي د خپل پلار له طرفه حسني او د مور له طرفه حسيني دى، دا معاملهٔ د ابراهيم عليه السلام د دواړو زامنو اسماعيل او اسحاق عليهما السلام په شان ده، د بني اسرائيلو ټول پيغمبران د اسحاق عليه السلام له اولادې څخه پيدا شوي دي او د اسماعيل عليه السلام له اولادې څخه يوازې خاتم الانبياء محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم مبعوث شو، چې د ټولو پيغمبرانو قايم مقام دى او د بنو اسماعيل لپاره ښه بدله ده. د چې د امت زياتره علماء د حسين رضي الله عنه له اولادې

---

۱- المرقاة: ۱۰/ ۱۷۳، باب اشراط الساعة، الفصل الثاني.

ځخه پيدا شوي دي، نو مناسبه وه چې د حسن رضي الله عنه له اولادې ځخه داسې شخص پيدا شي، چې په ټولو امامانو کې کامل امام او د ټولو صوفيانو قايم مقام وي.

**لومړۍ يادونه:** له ځينو روايتونو داسې ښکاري چې مهدي د عباس رضي الله عنه له اولادې ځخه دی، لکه په حديث کې چې ذکر شوي دي: اللهم انصر العباس و ولد العباس ثلاثا. يا عم اما علمت ان المهدي من ولدك موفقا، رضيا مرضيا.[1] په دې اړه د کنز العمال ليکوال په اخر کې ليکلي دي: رجال سنده ثقات.

ژباړه: رسول الله صلى الله عليه وسلم درې ځلې دا دعاء وکړه: ای الله! د عباس او د هغه د اولادې مرسته وکړه. بيا يې وفرمايل: ای کاکاجانه! ای ته نه پوهېږې، چې مهدي به ستا له اولادې ځخه وي، چې توفيق به ورکړل شي، خوشحاله به وي او خوشحالي به يې موندلې وي.

د دې روايت په ځينو طريقو کې محمد بن زکريا الغلابي په نوم راوي موندل کېږي، چې غير معتبر دی، تر دې چې ځينو يې په اړه (کان يضع الحديث) ليکلي دي، يعنې حديثونه به يې وضع کول.[2]

د همدې روايت په يوه بله طريقه کې يو بل راوي د محمد بن يونس الکديمي په نوم هم شته، چې د ده په اړه علماوو ليکلي دي: متهم بالوضع، يعنې د حديثو د جوړلو الزام پرې لګېدلی دی.[3]

---

۱- منتخب کنز العمال: ٦/ ٣١.

٢- المغني للذهبي: ٢/ ٣٠٠.

٣- المهدي: لعادل الذکي: ٥٦.

که دا روایت قبول هم شي، نو امکان دې ولري چې عباس رضي الله عنه ته یې له دې امله نسبت شوی وي، چې نوموړی په هغه وخت کې د خپلې کورنۍ یوازینی مشر و او ماشومان د کور مشرانو او د هغوی مسوولیتونو ته منسوبول عامه خبره ده.

**دویمه یادونه:** په ځینو کتابونو کې د مهدي د مور نوم امنه لیکل شوی دی، خو موږ په دې اړه کومه مستنده حواله پیدا نه کړه، چې دا خبره راته په ثبوت ورسوي.

**د مهدي لقب:**

لقب یې پېژندلی نوم (مهدي) دی، چې د (هدایت موندونکي) په معنا دی (چاته چې د الله تعالی له لوري هدایت وشي او له دې سره د نورو د هدایت وسیله هم وګرځي). په دې توګه له لفظي اعتباره هر نېک بنده ته چې هدایت ورته شوی وي او په نېغه لار روان وي، مهدي ویل کېږي، خو د اهل سنت والجماعة په اصطلاح (چې په حقیقت کې شرعي اصطلاح ده) چې کله د مهدي کلمه ویل کېږي، نو له دې څخه هغه پاک شخصیت مراد دی، چې د راتګ زېری یې قیامت ته نږدې د عیسیٰ علیه السلام له نازلېدو څخه مخکې په متواترو احادیثو کې ورکړل شوی دی، نوموړی به د نهیلۍ په داسې وخت کې راشي، چې مسلمانان به بېخي د نهیلۍ په حالت کې وي او دا به نوې هیلې راتوکوي، همدارنګه لکه څنګه چې مو مخکې هم یادونه وکړه، نوموړی به د اسلامي امت د پرمختګ سبب وګرځي. په احادیثو کې چې د مهدي په اړه کومې خاصې نقطې او علامې ذکر شوي دي، هغه له ده پرته په بل هېچا صدق نه کوي.

## د مهدي له لقب سره د (امام) او عليه السلام د استعمال حقيقت

**د امام کلمه:**

ځينې خلک د مهدي له نوم سره د امام کلمه زياتوي او زموږ ځينو علماوو له قوي دلايلو سره د دې د استعمال اجازه هم ورکړې ده، خو بيا هم د دې استعمال مناسب نه دی، نه بايد د ده په حق کې دغه کلمه په اصطلاحي شکل استعمال شي او نه په لغوي شکل، ځکه چې د امام له کليمې سره دا اندېښنه پيدا کېږي، چې د شيعه ګانو عقيده مروج کېږي او هغه داچې شيعه ګان دولسو کسانو ته قايل دي، چې دوی پاک شخصيتونه دي او د امام په نوم يې تعبيروي. که د مهدي له لقب سره د امام کليمه ذکر شي، نو دا به زموږ او د شيعه ګانو مشابهت وي، نو ځکه خو يې پرېښودل افضل دي. همدارنګه په لغوي اعتبار دې هم له مهدي سره دا کليمه استعمال نه شي، ځکه چې خلفاء راشدين په درجه کې له ده څخه لوړ دي، خو بيا هم د هغوی لپاره د امام کليمه نه ده استعمال شوې.

**د عليه السلام کلمه:**

په دې ترتيب ځينې خلک له مهدي سره د عليه السلام کليمه يو ځای کوي، په داسې حال کې چې په عرف کې د عليه السلام کليمه يوازې د پيغمبرانو او ملايکو لپاره استعماليږي او مهدي نه پيغمبر دی او نه کومه ملايکه، له دې امله بايد د عليه السلام کليمه هم استعمال نه شي، بلکې رضي الله عنه ويل به مناسب وي.

د ديوبند شيخ الحديث مفتي سعيد احمد پالنپوري رحمه الله د (حجة الله البالغة) په بې ساري شرح (رحمة الله الواسعة) کې په دې اړه ليکي:

((شاه صاحب رحمه الله هم د جمعې د ورځې په خطبو کې د حسن او حسين رضي الله عنهما له نوم سره د عليه السلام کليمه يوځای استعمال کړې ده، په داسې حال کې چې دا د شيعه ګانو عقيده ده او دا عذر چې ګويا دا به په لغوي معنا کې استعمال شوې وي، ځکه صحيح نه دی چې د خلفاء راشدينو په نومونو سره دا کليمه نه ده استعمال شوې، په داسې حال کې چې هغوی يې ډېر حقداره وو. همدارنګه په ډېرو مضامينو کې ليکوالانو د مهدي له نوم سره د عليه السلام کلمه يو ځای کړې ده، چې د اهل سنت والجماعة په نزد په هېڅ شکل هم صحيح نه ده، ځکه چې د دولسو امامانو د نبوت او عصمت عقيده د شيعه ګانو ده)).[1]

د عليه السلام په اړه تقريبًا دا خبره مولوي خيرمحمد جالندهري هم د يوې پوښتنې په ځواب کې کړې ده.[2]

لنډه داچې د امام مهدي عليه السلام لقب چې په خلکو کې مشهور شوی دی، دا د شيعه ګانو د هلو ځلو نتيجه ده يا دا چې په ناخبرۍ کې هر ليکوال په خپله ليکنه کې دا کار کړی دی، نو په دې لړ کې بايد ډېر احتياط وشي.

---

۱- رحمة الله الواسعة: ۱/۸۵.

۲- خيرالفتاوىٰ: ۱/۱۴۷.

**د مهدي سره رضي الله عنه كليمه:**

پاتې شوه دا خبره، چې له مهدي سره د رضي الله عنه كليمه ويل په كوم ډول صحيح دي؟ د دې وجه خو دا ده، چې نوموړى به له عيسىٰ عليه السلام سره دوه كاله تېر كړي، همدارنګه په احاديثو كې د مهدي سره د (يرضىٰ عنه ساكن السماء والارض) الفاظ هم راغلي دي، يعنې د اسمان او ځمكې خلك به ترې خوشحاله وي[1].

دې ته په پام سره د رضي الله عنه پاكې كليمې د مهدي د يادولو پر مهال روا دي.

**يادونه:** په احاديثو كې خو د مهدي لپاره د امام كليمه ډېره ذكر شوې ده، چې په پخوانيو او وروستنيو علماوو كې ډېركسان له مهدي سره د امام كليمه يوځاى كوي، دې روايتونو ته په كتو خو له مهدي سره د امام د كليمې يوځاى كول روا دي، خو داچې د شيعه ګانو اساسي عقيده د امامانو ده، په دې اساس به مناسبه نه وي، چې موږ د امام كليمه استعمال كړو. وَلِلنَّاسِ فِيْ مَا يَعْشَقُوْنَ مَذَاهِبُ.

**ژباړه:** د هر چا خپله خوښه.

لنډه دا چې د نوموړي مناسب لقب مهدي رضي الله عنه دى.

---

۱- كنزالعمال: ۱۴/ ۲۷۰، رقم: ۳۸۵۸۶.

## پلرنی وطن يې

عن أم سلمة زوج النبي صلى الله عليه وسلم قال: يكون اختلاف عند موت خليفة، فيخرج رجل من أهل المدينة هاربا إلى مكة فيأتيه ناس من أهل مكة فيخرجونه وهو كاره فيبايعونه بين الركن والمقام الخ.[1]

ژباړه: كله چې يو خليفه وفات شي، نو د مدينې له خلكو څخه به يو تن مكې مكرمې ته وتښتي، خلك به ورسره ورشي او د امامتی او مشرۍ لپاره به يې راوباسي، په داسې حال كې چې هغه به امامتي ته خوښوي، بيا به خلك له هغه سره د حجر اسود او مقام ابراهيم په منځ كې بيعت وكړي.

د مهدي د زېږېدو ځای مدينه منوره ده، د راڅرګندېدو ځای يې مكه مكرمه ده او بيت المقدس ته بد د دين د سرلوړۍ لپاره هجرت وكړي.

ملا علي قاري رحمه الله د فقه اكبر په شرح كې ليكلي دي:

إن المهدي يظهر أولا في الحرمين، ثم يأتي بيت المقدس. الخ [2]

ژباړه: مهدي به لومړی په حرمينو كې راښكاره شي او بيا به بيت المقدس (يروشلم Jerusalem) ته لاړ شي.

---

١- ابو داود : ٢/ ٥٨٩.

٢- شرح فقه الاكبر : ١٣٦.

**د مهدي شكل او صورت د احاديثو په رڼا كې:**

په احاديثو كې د مهدي له نوم او نسب سره د هغه شكل او صورت هم په مختصر ډول ښودل شوی دی، څو خلک د هغه په پېژندنه كې شكمن نه شي.

عن أبي سعيد الخدري رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: المهدي مني أجلي الجبهة، أقني الانف، يملأ الارض قسطا وعدلا كما ملئت ظلما وجورا، و يملك سبع سنين. [1]

ژباړه: له ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روایت دی هغه وايي: چې مهدي زما له اولادې څخه دی، پراخه تندی (وچولی) او نرۍ لوړې پوزې خاوند دی ځمكه به داسې له عدل او انصاف څخه ډكه كړي لكه څرنګه چې له ظلم او ستم څخه ډكه ده او دا به اووه كاله پاچايي وكړي.

په دې حديث كې چې د مهدي كومې دوه نښې ذكر شوي دي، هغه د ستركو ليدلو سره نېغ ارتباط لري. يو دا چې نوموړی به د پراخ تندي خاوند وي او دويم دا چې پوزه به يې نرۍ لوړه وي. په دې دواړو شيانو د انسان ښكلا نوره هم زياتېږي، نو ځكه يې د ښايست دغه دوه خصوصيتونه ذكر شول، همدا سبب دی چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د شكل او صورت په اړه هم همدا دوه شيان ذكر شوي دي. [2]

---

١- ابو دا ود، كتاب المهدي: ٢/ ٥٨٨.

٢- شمائل ترمذي: ٢.

د دې دوه شيانو د يادونې هدف دا دی چې هغه به ښايسته هم وي، خو اصلي نښه او پېژندګلوي يې دا ده، چې ځمکه به داسې له عدل او انصاف ډکه کړي، څنګه چې له ظلم او ستم څخه ډکه وه.[۱]

دې ته ورته يو روايت په مستدرک حاکم کې هم شته:

عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: المهدي منا أهل البيت أشم الانف، اقنىٰ، أجلى يملا الارض قسطا وعدلا كما ملئت جورا وظلما، يعيش هكذا، وبسط يساره واصبعين من يمينه المسبحة والابهام عقد ثلاثة.[۲]

ژباړه: له ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی هغه وايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ((مهدي به زموږ له اهل بيتو څخه وي، نېغه لوړه پوزه به يې وي او پراخه تندی به لري، هغه به ځمکه داسې له عدل او انصاف څخه ډکه کړي، څنګه چې مخکې له ظلم او ستم څخه ډکه وه. هغه به دومره (کلونه) ژوندی وي. (له دې خبرې وروسته) رسول الله صلى الله عليه وسلم (ښځه ګوتې پراخه کړې) چپ لاس خلاص کړ او د ښي لاس دوه ګوتې (د شهادت ګوته او غټه ګوته) يې هم خلاصې کړې او پاتې درې ګوتې يې راغبرګې کړې (ګويا ټولې يې اووه ګوتې خلاصې کړې) )).

په يو بل حديث کې يو بل صفت هم ذکر شوی دی:

---

۱- معارف الحديث: ۸/ ۱۷۱.

۲- مستدرك للحاكم: ۴/ ۶۰۰، رقم: ۸۶۷۰، هذا حديث صحيح على شرط مسلم، ولم يخرجاه.

عن علي رضي الله عنه قال: المهدي فتى من قريش ادم ضرب من الرجال. [۱]

ژباړه: له علي رضي الله عنه څخه روايت دى هغه وايي: مهدي به غنمرنګى او د وچ بدن خاوند قريشي زلمى به وي.

په پورتنيو حديثونو كې خو يې درې خصوصيات او ځانګړتياوې ذكر شوې، خو د علامې په توګه په حديثو كې دا خبره هم شوې، چې نوموړى به په سيرت او صورت كې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورته وي. هو! له دې څخه څوک انكار نه شي كولى، چې نوموړى به خلك ځان ته په دې توګه راجذبوي، چې له يوې خوا به يې اخلاق او كمال په لوړه درجه كې وي او له بل لوري يې شكل او صورت هم ښايسته دى.

**مهدي به په اخلاقو كې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورته وي:**

امام ابو داود رحمه الله د ام سلمه رضي الله عنها له حديث لاندې ليكلي دي:

يشبهه في الخُلُق ولا يشبهه في الخَلْق. [۲]

ژباړه: مهدي به په اخلاقو كې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورته وي، خو په شكل او صورت كې به نه وي.

---

۱- منتخب كنز العمال: ۶/ ۳۴، على هامش مسند احمد.

۲-ابو داود: ۲/ ۵۸۹، رقم: ۴۲۹۰.

د بذل المجهود ليكوال ليكلي دي:

يشبهه في الخلق اي في اخلاقه العالية ولا يشبهه في الخلق اي في ظاهر الصورة. [۱]

ژباړه: مهدي به په لوړو اخلاقو كې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورته وي، خو په ظاهري شكل او صورت كې به ورسره مشابهت نه لري.

## د مهدي راڅرګندېدل او د هغه وخت حالات

### مهدي به څنګه راڅرګند شي؟

نه شو كولى چې د مهدي د راڅرګندېدو او ظهور وخت تعين كړو، البته كله چې هغه راڅرګندېږي، نو په احاديثو كې ورته نږدې داسې اشارې شته، چې له هغې څخه يې څه ناڅه معلومات ترلاسه كېږي، يعنې دا به هغه وخت كې وي چې د مهدي راڅرګندېدو ته به ډېره لږه موده پاتې وي او هغه دا چې:

كله چې يو خليفه وفات شي، نو په مسلمانانو كې به د امارت پر سر لانجې سر راپورته كړي، چې بايد څوک امير شي؟ له مدينې منورې څخه به يو باكماله شخصيت (مهدي چې تر دې وخته پورې به په خلكو كې پېژندل شوى نه وي) به مكې مكرمې ته لاړ شي، هغه به په دې اندېښمن وي، چې هسې نه ده ته د امارت چارې وسپارې، يعنې دا به نه غواړي، چې د خلكو مشر او امير شي. نوموړى به هڅه كوي، چې په يو ځاى كې ځان پټ كړي، خو د مكې ځينې خلك به دغه

---

۱- بذل المجهود: ۵/ ۱۰۳.

نامتو شخصيت وپېژني او سره له دې چې مهدي به نه غواړي، چې امير شي، بيا به هم خلك ورسره د حجراسود او مقام ابراهيم په منځ كې بيعت وكړي.

**له مهدي سره (۳۱۳) بيعت كوونكي:**

خلك به له مهدي سره سمدستي بيعت وكړي، چې د دغو بيعت كوونكو شمېر به د بدر د صحابه وو كرامو او د طالوت د ملګرو د شمېر په اندازه وي، يعني درې سوه ديارلس (۳۱۳) تنه به وي (د مشهور قول له مخې په بدر كې درې سوه ديارلس تنه صحابه كرام او كله چې طالوت خپلو ملګروته امر وكړ، چې د جالوت په طرف روان شي، نو د دوی شمېر هم درې سوه ديارلس تنه و). دا درې سوه ديارلس تنه به د ډېرې لوړې درجې خاوندان وي او له خيرالقرون څخه وروسته به په ټولو وروستنيو خلكو كې غوره او افضل خلك وي. كله چې له دې پېښې خلك خبر شي، نو له هر لوري به ډلې ډلې مخلصان بنده ګان راماتېږي او ځانونه به مهدي ته رسوي.

**د (نفس زكيه) له وژلو وروسته به مهدي راڅرګند شي:**

روي ابن ابي شيبة عن مجاهد قال: حدثني فلان رجل من اصحاب النبي صلى الله عليه وسلم: إن المهدي لا يخرج حتى تقتل النفس الزكية، فاذا قتلت النفس الزكية، غضب عليهم من في السماء ومن في الارض، فاتي الناس المهدي فزفوه كما تزف العروس الى زوجها ليلة عرسها وهو يملا الارض قسطا وعدلا و

تخرج الارض من نباتها وتمطر السماء مطرها وتنعم امتي في ولايته نعمة لم تنعمها قط.[1]

ژباړه: ابن ابي شيبه له مجاهد رحمه الله څخه روايت کړی دی، چې ماته يو صحابي رضي الله عنه دا خبره بيان کړه، چې «د نفس زکيه له قتل وروسته به مهدي راڅرګند شي. د نفس زکيه پر قتل به د ځمکې او اسمانونو ټول مخلوق په غوسه شي، له دې وروسته به خلک مهدي ته راشي او هغه به دومره تيار کړي، لکه څومره چې ناوې تيارېږي، هغه به ځمکه له عدل او انصاف څخه ډکه کړي، ځمکه به غلې دانې وکړي، له اسمانونو څخه به بارانونه وشي، د ده په خلافت کې به زما امت داسې په مزو چړچو ژوند تېروي، لکه مخکې به يې تېر کړی نه وي».

اوس دا پوښتنه پيدا کېږي، چې نفس زکيه څوک دی؟

د نفس زکيه په اړه دوه اقواله دي:

۱- لومړی قول دا دی، چې له دې څخه هغه خليفه مراد دی، چې د هغه له وفات کېدو وروسته به په مسلمانانو کې د امارت او خلافت په اړه اختلافات راولاړ شي، چې وروسته به د خلافت چارې مهدي ته وسپارل شي، بيا به د خلافت لالچيان د مهدي په ضد بغاوت وکړي، چې مهدي به هم د باغيانو په خلاف جګړه وکړي، د دې جګړې تفصيل به وروسته ذکر شي.

۱- المهدي: ٦٥.

له پخوا زمانې څخه دا معامله را روانه ده، چې کله عزتمند سړی مړ یا شهید شي، نو خلک پرې د نفس زکیة نوم کېږدي او د نفس زکیه په حدیث یې محمولوي، خو د دوی دا دعوه صحیح نه ده، ځکه چې د نفس زکیه له مړینې وروسته به مهدي راڅرګند شي.

۲- یوه ډله په دې نظر ده، چې له نفس زکیه څخه د مسلمانانو د لوی ډلې وژل مراد دي، النفس د جمع لپاره استعمال شوی دی، هغه به داسې له فتنو ډکه زمانه وي، چې په هغه وخت کې به پر حق تلل د لوی کرامت خبره وي، یوازې د الله تعالی نوم اخیستل به داسې ګناه وي، چې خلک به پرې وژل کېږي. په هغه وخت کې به د پرې مسلمانان ووژل شي، کله چې په مسلمانانو دا سخت حالت راشي، نو الله تعالی به پر مسلمانانو ورحمېږي او مهدي رضي الله عنه به د یو نجات ورکوونکي په شکل راڅرګند کړي.

د دواړو قولونو په منځ کې داسې تطبیق کېږي، چې د مسلمانانو په دې قتل عام کې به نفس زکیه هم ووژل شي، چې د وخت خلیفه به وي.

له ختیځ څخه به داسې ډله راشي، چې د مهدي تائید به وکړي او د هغه د حکومت په رامنځ ته کولو کې به مرسته وکړي. په دې لړ کې لاندې حدیث نقل شوی دی:

عن عبدالله بن الحارث بن جزء الزبيدي رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: يخرج ناس من المشرق فيوطئون للمهدي يعني سلطانه.[1]

**ژباړه: له عبدالله بن الحارث بن جزء الزبيدي رضي الله عنه څخه روايت دی هغه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: له ختيځ څخه به خلک راشي، چې له مهدي سره به د حکومت په رامنځ ته کولو کې مرسته وکړي.**

**د دې حديث د ټولو راويانو په اړه مفتي نظام الدين شامزی رحمه الله وايي، چې دا حديث د منلو وړ دی، ځکه چې هېڅا ورته موضوعي نه دی ويلی.**

**د عراق، شام او يمن ابدال[2] به راشي او د مهدي په لاس به بيعت وکړي، په دې لړ کې به ځای پر ځای احاديث ذکر شي.**

**د مهدي د خلافت په موده کې د جګړې تفصيل:**

**صحيح او حسن روايتونو ته په کتو کله چې مهدي د مسلمانانو خليفه وټاکل شي، نو د قتال لړۍ به پيل شي، چې دا به په درېو برخو وېشل شوې وي:**

**۱- له باغيانو سره جګړه.**

**۲- دفاعي جګړه.**

**۳- اقدامي جګړه**

---

۱- سنن ابن ماجه: ۳۰۰، رقم: ۴۰۸۸.

۲- ابدال د هغه الله (تعالى) د وليانو ډلې ته وايي، چې په ټوله نړۍ کې به راپورته شي. (ژباړن)

**۱ - له باغيانو سره جګړه**

**په لومړيو وختونو کې به د مهدي لښکر د اسبابو او وسايلو له پلوه کمزورې وي، خو د الله تعالی مرسته او کومک به ورسره ملګرې وي، چې له برکته به يې مخکې روان وي.**

**له باغيانو سره د قتال په اړه علي رضي الله عنه يو روايت نقل کړی دی، چې د مهدي د مقابلې لپاره به باغيان تر اوو او د بل روايت له مخې تر نهو بيرغونو لاندې راټول شوي وي.**

عن علي بن ابي طالب رضي الله عنه يقول: ستكون فتنة يحصل الناس منها كما يحصل الذهب في المعدن، فلا تسبوا اهل الشام، وسبوا ظلمتهم، فان فيهم الابدال، وسيرسل الله اليهم سيبا من السماء فيغرقهم حتى لو قاتلتهم الثعالب غلبتهم، ثم يبعث الله عند ذلك رجل من عترة الرسول صلى الله عليه وسلم في اثنى عشر الفا إن قلوا، وخمسة عشر الفا إن كثروا، امارتهم او علامتهم: ((امت امت)). على ثلاث رايات يقاتلهم اهل سبع رايات، ليس من صاحب راية الا وهو يطمع بالملك، فيقتتلون ويهزمون ثم يظهر الهاشمي فيرد الله الى الناس الفتهم ونعمتهم، فيكونون على ذلك حتى يخرج الدجال. [1]

---

۱- مستدرك للحاكم: ۴/ ۵۹۶، رقم: ۸۶۵۸، وهذا حديث صحيح ا لاسناد ولم يخرجاه.

ژباړه: علي رضي الله عنه وايي: ((ډېر ژر به فتنه راولاړه شي، په دې کې به خلک داسې بېل بېل شي، لکه سره زره چې له خپل کان او معدن څخه چاڼېږي. تاسو شاميانو ته بدې ردې مه وايئ، ځکه چې په دوی کې به ابدال وي، د هغوی ظالمانو ته بد ووايئ. الله تعالی به پر دوی بارانونه ووروي، چې له دې سره به ډوب شي. دوی به (له دې غرقېدو سره) دومره کمزوري شي، چې که گيدړ هم ورسره مقابله وکړي، نو پر دوی به غالب شي. په دې وخت کې به الله تعالی هاشمي (مهدي) مبعوث کړي، چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم له اولادې څخه به وي، له ده سره به لږ تر لږه دولس زره (۱۲۰۰۰) او ډېر به پنځلس زره (۱۵۰۰۰) تنه لښکر وي، د دوی شعار به د (امت امت) الفاظ وي، لښکر به له درېو بيرغونو لاندې جنگېږي او مقابل لوری به تر اوو بيرغونو لاندې جنگېږي. د بيرغ هر مشر به د اقتدار او واک ته د رسېدو په تمه وي، هغوی به وجنگېږي او ماتې به وخوري، بيا به الله تعالی هاشمي (مهدي) ته فتح ورکړي او خلکو ته به هغه مينه او نعمتونه بېرته ورکړي، بيا خلک د دجال تر راڅرگندېدو پورې په همدې خوشحالۍ کې وي)).

د دې روايت د (يقاتلهم اهل سبع رايات) څخه په ډاگه معلومېږي، چې دا قتال به له باغيانو څخه پيل شي او موخه به يې د خلافت او حکومت تمه او لالچ وي.

**د سفياني راوتل او د مهدي لومړنۍ كرامت:**

د مهدي په واقعاتو كې د سفياني واقعه ډېره مهمه ده، د احاديثو په كتابونو كې په دې اړه ډېر روايتونه نقل شوي دي، چې زياتره يې د سند په اعتبار متكلم فيه دي.

**د سفياني د تسميې سبب:**

سفياني به د خالد بن يزيد بن ابوسفيان له اولادې څخه وي، نو ځكه ورته سفياني وايي، اصلي نوم به يې عروه وي. دا به د قريشو له كورنۍ څخه وي او د مور له طرفه نيكه به يې د بنو كلب له قبيلې څخه وي، نو ځكه به يې بنو كلب ملګري وي.

سفياني به د شام د دمشق د اطرافو اوسېدونكى وي، حكم به يې د شام او مصر په شاوخوا ځايونو كې چلېږي، ډېر ظالم او جابر انسان به وي، په خلكو كې به قتل عام وباسي، په ځانګړې توګه سيدان به خپله نښه ګرځوي، د ښځو ګېډې به څيرې كوي، ماشومان به وژني او كله چې د قيس قبيله يې مقابلې ته راووځي، نو ټول به له مخې ووژني. په دې لړ كې روايتونه په لاندې ډول دي:

۱- اخبرنا عبدالرزاق عن معمر عن قتادة يرفعه الى النبي صلى الله عليه وسلم قال: يكون اختلاف عند موت خليفة، فيخرج رجل من المدينة فياتي مكة، فيستخرجه الناس من بيته وهو كاره، فيبايعونه بين الركن والمقام، فيبعث اليه جيش من الشام، حتى اذا كانوا بالبيداء خسف بهم، فياتيه عصائب العراق وابدال الشام،

فيبايعونه فيستخرج الکنوز ويقسم المال، ويلقى الاسلام بجرانه الى الارض، يعيش في ذلك سبع سنين او قال تسع سنين.»[۱]

ژباړه: کله چې يو خليفه وفات شي، نو له هغه وروسته به اختلافات راولاړ شي، په دې وخت کې به يو شخص له مدينې منورې څخه مکې مکرمې ته لاړ شي، خلک به يې په زوره له کور څخه راوباسي او د حجر اسود او مقام ابراهيم په منځ کې به ورسره بيعت وکړي. د شام له لورې به د ده مقابلې ته يو لښکر راولېږل شي، کله چې لښکر د بيداء مقام ته راورسېږي، نو په ځمکه به ننوځي. بيا به ده ته له عراق څخه ځينې دلې او د شام ابدال راشي او بيعت به ورسره وکړي، هغوی به خزانې راوباسي او تقسيم به يې کړي، اسلام به هم په ځمکه کې قراري ومومي او هغه به تر اوو يا نهو کالو پورې په دې حالت کې وي.

۲- عَنْ حَفْصَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، أَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: «لَيُؤُمَّنَّ هَذَا الْبَيْتَ جَيْشٌ يَغْزُوْنَهُ، حَتَّى إِذَا كَانُوْا بِبَيْدَاءَ مِنَ الْأَرْضِ، يُخْسَفُ بِأَوْسَطِهِمْ وَيُنَادِيْ أَوَّلُهُمْ آخِرَهُمْ، ثُمَّ يُخْسَفُ بِهِمْ، فَلَا يَبْقَى إِلَّا الشَّرِيْدُ الَّذِيْ يُخْبِرُ عَنْهُمْ».[۲]

ژباړه: له حفصې رضي الله عنها څخه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: «په الله قسم! يو لښکر به د دې کور (بيت

---

۱- مصنف عبدالرزاق: ۱۱/ ۳۷۱، رقم: ۲۰۷۶۹.

۲- مسلم: ۲/ ۳۸۸، رقم: ۲۸۸۳.

الله] قصد وكړي، خو كله چې دوى د بيداء مقام ته ورسېږي، نو د لښكر منځنى برخه به په ځمكه ننوځي، مخكينى برخه به وروستنى برخې ته غږ وكړي، له دې وروسته به دوى هم په ځمكه ننوځي، له هغې وروسته به له نېكانو خلكو پرته هېڅوك ژوندي پاتې نه شي)).

۳- عَنْ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «سَيَعُوذُ بِهَذَا الْبَيْتِ - يَعْنِي الْكَعْبَةَ - قَوْمٌ لَيْسَتْ لَهُمْ مَنَعَةٌ، وَلَا عَدَدٌ وَلَا عُدَّةٌ، يُبْعَثُ إِلَيْهِمْ جَيْشٌ، حَتَّى إِذَا كَانُوا بِبَيْدَاءَ مِنَ الْأَرْضِ خُسِفَ بِهِمْ»، قَالَ يُوسُفُ: وَأَهْلُ الشَّأْمِ يَوْمَئِذٍ يَسِيرُونَ إِلَى مَكَّةَ.

ژباړه: له ام المؤمنين رضي الله عنها څخه روايت دى چې بې شكه رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ژر به يوه ډله بيت الله شريف ته پناه يوسي، چې نه به ورسره د دفاع قوت وي، نه به يې شمېر زيات وي او نه به يې تيارى نيولى وي، د دوى د مقابلې لپاره به يو لښكر راووځي، تر دې چې كله دوى د بيداء مقام ته راورسېږي، نو پر ځمكه به ننوځي. يوسف بن ماهك (راوي) وايي: چې په دې وخت كې به د شام خلك مكې ته كوچ كوي.

۴- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَخْرُجُ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ: السُّفْيَانِيُّ فِي عُمْقِ دِمَشْقَ، وَعَامَّةُ مَنْ يَتْبَعُهُ مِنْ كَلْبٍ، فَيَقْتُلُ حَتَّى يَبْقَرَ بُطُونَ النِّسَاءِ، وَيَقْتُلُ الصِّبْيَانَ، فَتَجْمَعُ لَهُمْ قَيْسٌ فَيَقْتُلُهَا حَتَّى لَا يُمْنَعُ ذَنَبُ تَلْعَةٍ، وَيَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي فِي الْحَرَّةِ فَيَبْلُغُ السُّفْيَانِيَّ، فَيَبْعَثُ إِلَيْهِ جُنْدًا مِنْ جُنْدِهِ فَيَهْزِمُهُمْ، فَيَسِيرُ

إِلَيْهِ السُّفْيَانِيُّ بِمَنْ مَعَهُ حَتَّى إِذَا صَارَ بِبَيْدَاءَ مِنَ الْأَرْضِ خُسِفَ بِهِمْ، فَلَا يَنْجُو مِنْهُمْ إِلَّا الْمُخْبِرُ عَنْهُمْ.[۱]

ژباړه: له ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی هغه وايي: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي: يو سړی به له دمشق څخه راووځي، چې سفياني به نومېږي، د هغه په ملګرو کې به زياتره خلک له بنو کلب څخه وي، هغوی به خلک قتلوي، تر دې چې د ښځو ګېډې به څيرې کړي او ماشومان به يې هم ووژني. د قيس قبيلې خلک به د سفياني په مقابله کې ودرېږي، د قيس قبيلې خلک به هم ووژني، تر دې چې يو تن به يې هم پاتې نه شي. بيا به زما له اهل بيتو څخه يو شخص (مهدي) د حره په سيمه کې راڅرګند شي. کله چې سفياني له دې څخه خبر شي، نو د هغه مقابلې لپاره به خپل لښکر ولېږي. مهدي به دې لښکر ته ماتې ورکړي، له دې وروسته به سفياني خپله لښکر له ځان سره روان کړي او د مهدي مقابلې ته به راروان شي، تر دې چې کله دوی د بيداء [۲] مقام ته راورسېږي، نو ځمکه به يې ننباسي، په دوی کې د نېکانو خلکو پرته به هېڅوک پاتې نه شي.

۵- عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «اَلْعَجَبُ إِنَّ نَاسًا مِنْ أُمَّتِيْ يَؤُمُّوْنَ بِالْبَيْتِ بِرَجُلٍ مِنْ قُرَيْشٍ، قَدْ لَجَأَ بِالْبَيْتِ، حَتَّى إِذَا كَانُوْا بِالْبَيْدَاءِ خُسِفَ بِهِمْ»، فَقُلْنَا: يَا رَسُوْلَ اللهِ!

---

۱- مستدرك على الصحيحين: ۴/ ۵۶۵، رقم: ۸۵۸۶.

۲- د ذوالحليفې مخامخ د مکې په لور د يو پراخه دښتې نوم دی.

إِنَّ الطَّرِيْقَ قَدْ يَجْمَعُ النَّاسَ، قَالَ: «نَعَمْ، فِيْهِمُ الْمُسْتَبْصِرُ وَالْمَجْبُوْرُ وَابْنُ السَّبِيْلِ، يَهْلِكُوْنَ مَهْلَكًا وَاحِدًا، وَيَصْدُرُوْنَ مَصَادِرَ شَتَّى، يَبْعَثُهُمُ اللهُ عَلَى نِيَّاتِهِمْ.»[۱].

ژباړه: له عايشې رضي الله عنها څخه روايت دی، هغه وايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ((زما د امت څو كسان به د قريشو يو تن (سره د جنګ لپاره) مخه كړي، چې په بيت الله شريف كې به يې پناه اخيستې وي، تر دې چې كله دغه لښكر د بيداء مقام ته ورسېږي، نو پر ځمكه به ننوځي)). موږ ووېل: ((ای د الله رسوله! په لاره كې به خو ګناهګار او بې ګناه خلك هم وي؟)). رسول الله [صلى الله عليه وسلم] وفرمايل: ((هو! په دې كسانو كې به داسې خلك وي، چې په خپله خوښه به راغلي وي، ځينې به په كې مجبوره شوي وي او ځينې به په كې لارويان هم وي، خو ټول به پر ځمكه ننويستل شي، بيا به يې الله تعالى د خپلو نيتونو مطابق راپاڅوي)).

فايده: كله چې د سفياني لښكر پر ځمكه ننوځي او خلك له دې پېښې خبر شي، نو خلك به خپله له لښكر سره مكې مكرمې ته مخه كړي او پر هغې به حمله وكړي. په دې وخت كې به مسلمانان د مهدي په امارت كې د ظاهري اسبابو له پلوه ډېر كمزوري وي، لكه څنګه چې د بدر غزا حالت و، خو الله تعالى به يې مرسته وكړي او د سفياني لښكر ته به بيا هم ماتې وركړي او د مهدي لښكر به غالبه كړي.

---

۱- مسلم، كتاب الفتن: ۲/ ۳۸۸، رقم: ۲۸۸۴.

۶- عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «يَكُوْنُ اخْتِلَافٌ عِنْدَ مَوْتِ خَلِيْفَةٍ، فَيَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَدِيْنَةِ هَارِبًا إِلَى مَكَّةَ، فَيَأْتِيهِ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ فَيُخْرِجُوْنَهُ وَهُوَ كَارِهٌ، فَيُبَايِعُوْنَهُ بَيْنَ الرُّكْنِ وَالْمَقَامِ، وَيُبْعَثُ إِلَيْهِ بَعْثٌ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ، فَيُخْسَفُ بِهِمْ بِالْبَيْدَاءِ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِيْنَةِ، فَإِذَا رَأَى النَّاسُ ذَلِكَ أَتَاهُ أَبْدَالُ الشَّامِ، وَعَصَائِبُ أَهْلِ الْعِرَاقِ، فَيُبَايِعُوْنَهُ بَيْنَ الرُّكْنِ وَالْمَقَامِ، ثُمَّ يَنْشَأُ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ أَخْوَالُهُ كَلْبٌ، فَيَبْعَثُ إِلَيْهِمْ بَعْثًا، فَيَظْهَرُونَ عَلَيْهِمْ، وَذَلِكَ بَعْثُ كَلْبٍ، وَالْخَيْبَةُ لِمَنْ لَمْ يَشْهَدْ غَنِيمَةَ كَلْبٍ، فَيَقْسِمُ الْمَالَ، وَيَعْمَلُ فِي النَّاسِ بِسُنَّةِ نَبِيِّهِمْ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَيُلْقِي الْإِسْلَامُ بِجِرَانِهِ فِي الْأَرْضِ، فَيَلْبَثُ سَبْعَ سِنِيْنَ، ثُمَّ يُتَوَفَّى وَيُصَلِّيْ عَلَيْهِ الْمُسْلِمُوْنَ».[1]

ژباړه: له ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ((کله چې يو خليفه وفات شي، نو د هغه له مرګ څخه وروسته به اختلافات راولاړ شي، په دې وخت کې به يو شخص له مدينې منورې څخه مکې مکرمې ته وتښتي. د مکې خلک به دې شخص ته راشي او په زوره به يې راوباسي، په داسې حال کې چې د ده به خوښه نه وي، بيا به د حجر اسود او مقام ابراهيم په منځ کې ورسره بيعت وکړي. بيا به د شام له لوري د دې شخص مقابلې ته يو لښکر راولېږل شي، خو کله چې دغه لښکر بيداء مقام ته راورسېږي، نو پر ځمکه به ننوځي، چې دا د مکې او مدينې تر

1- ابو داود، كتاب المهدي: ۲/ ۵۸۹.

منځ سیمه ده. کله چې خلک دا حالت ووینې، نو د شام او عراق د نېکانو خلکو ډلې به دې شخص ته راشي او بیعت به ورسره وکړي. بیا به له قریشو څخه یو شخص راڅرګند شي، چې د بنو کلب قبیلې اوسېدونکی به وي، هغه به د مهدي د مقابلې لپاره لښکر راوباسي، د مهدي لښکر به پرې غالبه شي، همدا د بنو کلب لښکر دی، څوک چې د بنو کلب په غنیمت کې موجود نه و، هغه تاواني دی. بیا به مهدي غنیمت ووېشي او په خلکو کې به د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زمانې په شان د شریعت احکام نافذ کړي. اسلام به خپله غاړه پر ځمکه کېږدي (یعنې په ځمکه به حاکم شي)، هغه به تر اوو کالو پورې وي، بیا به مهدي وفات شي او مسلمانان به یې جنازه وکړي)).

## د غنیمت وېشل:

کله چې مهدي سفیاني لښکر او بنو کلب ته ماتې ورکړي، نو غنیمت به ووېشي، د غنیمت په وېش کې به د رسول الله صلی الله علیه وسلم پر سنتو عمل وکړي او خلکو ته به دومره ډېر غنیمتونه ورکړي، چې دوی به یې پورته کولی نه شي.

په حدیث شریف کې د دې غنیمت ډېر فضیلت ذکر شوی دی:

عن ابي هريرة رضي الله عنه مرفوعا: المحروم من حرم غنيمة كلب ولو عقالا، والذي نفسي بيده! لتباعن نسائهم على درج دمشق، حتى ترد المراة من كسر يوجد بساقها. [١]

---

١- مستدرك للحاكم، رقم: ٨٣٢٩، على شرط الشيخين.

ژباړه: له ابوهريره رضي الهل عنه څخه روايت دی: څوک د بنو کلب په غنيمت کې برخه واخلي، که د يو عقال[1] په اندازه مال هم وي، نو هغه به نېکمرغه وي او څوک چې دا غنيمت وانخلي، نو هغه به محروم او بې برخې شمېرل کېږي.

د غنيمت له مال سربېره به د بنو کلب ښځې خپلې وينځې کړي، دا به دومره ډېرې وي، چې د دمشق په لويه لاره کې به خرڅېږي، په دې ښځو کې به يوازې هغه ښځه څوک وانخلي، چې په پونډۍ کې به يې لږ نقصان وي، نورې ټولې به خرڅې شي.

د شام فتح:

۲- دفاعي جګړه:

کله چې د مهدي له امله سفياني لښکر په ځمکه ننوځي، نو مهدي به ډېر مشهور شي، د الله تعالی موحد او حقپرسته بنده ګان به ډلې ډلې راځي، له دې وروسته به نوموړی له مکې مکرمې څخه مدينې منورې ته لاړ شي، د رسول الله صلی الله عليه وسلم روضې مبارکې ته له ورتلو وروسته به شام ته روان شي، چې په دې وخت کې به د شام واک له روميانو سره وي.

له روميانو څخه د ټولې اروپا عيسويان مراد دي، دا چې عيسوي هېوادونه د رومي کليسا منونکي او پيروان دي، نو ځکه په حديث کې د «الروم» له کلمې څخه اروپايي عيسويان مراد دي، دا چې څه موده مخکې اروپا په سياسي ډول وېشل شوې ده، خو لرې نه

1- د اوښانو او خارويو د پښو تړلو رسۍ. (ژباړن)

ده چې څو لسيزې وروسته به بېرته د پخواني روم په شكل سره متحد شي.

**د مهدي په مشرۍ د يوې جګړې تفصيل:**

د مهدي تر مشرۍ لاندې د جنګ وضاحت د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث په مفصل ډول بيان شوی دی او مناسبه معلومېږي، چې همدا حديث رانقل کړو. د دې حديث حواله نعيم بن حماد په «الفتن» او د همده له حوالې سره علامه سيوطي رحمه الله په «الجامع الكبير» كې او سيد برزنجي رحمه الله په «الاشاعة» كې ذكر کړې دی. دغه روايت د مهدي تر مشرۍ لاندې جګړه باندې تفصيلي رڼا اچوي، چې د زياترو اجزاوو تائيد يې په صحاح كې په صراحت سره شوی دی.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: يَكُوْنُ بَيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَبَيْنَ الرُّومِ هُدْنَةٌ وَصُلْحٌ، حَتَّى يُقَاتِلُوْا مَعَهُمْ عَدُوًّا لَهُمْ، فَيُقَاسِمُوْنَهُمْ غَنَائِمَهُمْ، ثُمَّ إِنَّ الرُّوْمَ يَغْزُوْنَ مَعَ الْمُسْلِمِيْنَ فَارِسَ فَيَقْتُلُوْنَ مُقَاتِلَتَهُمْ، وَيَسْبُوْنَ ذَرَارِيَّهُمْ، فَتَقُوْلُ الرُّوْمُ: قَاسِمُوْنَا الْغَنَائِمَ كَمَا قَاسَمْنَاكُمْ، فَيُقَاسِمُوْنَهُمُ الْأَمْوَالَ وَذَرَارِيَّ الشِّرْكِ، فَتَقُوْلُ الرُّوْمُ: قَاسِمُوْنَا مَا أَصَبْتُمْ مِنْ ذَرَارِيِّكُمْ فَيَقُوْلُوْنَ: لَا نُقَاسِمُكُمْ ذَرَارِيَّ الْمُسْلِمِيْنَ أَبَدًا، فَيَقُوْلُوْنَ: غَدَرْتُمْ بِنَا، فَتَرْجِعُ الرُّوْمُ إِلَى صَاحِبِهِمْ بِالْقُسْطَنْطِيْنِيَّةِ، فَيَقُوْلُوْنَ: إِنَّ الْعَرَبَ غَدَرَتْ بِنَا، وَنَحْنُ أَكْثَرُ مِنْهُمْ عَدَدًا، وَأَتَمُّ مِنْهُمْ عُدَّةً، وَأَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً، فَأَمِدَّنَا نُقَاتِلْهُمْ، فَيَقُوْلُ: مَا كُنْتُ

لأغدر بهم، قد كانت لهم الغلبة في طول الدهر علينا، فيأتون صاحب رومية فيخبرونه بذلك، فيوجه ثمانين غاية، تحت كل غاية اثنا عشر ألفًا في البحر، ويقول لهم صاحبهم: إذا رسيتم بسواحل الشام فاحرقوا المراكب لتقاتلوا عن أنفسكم، فيفعلون ذلك، ويأخذون أرض الشام كلها، برها وبحرها، ما خلا مدينة دمشق، والمعنق، ويخربون بيت المقدس " قال: فقال ابن مسعود: وكم تسع دمشق من المسلمين؟ قال: فقال النبي صلى الله عليه وسلم: «والذي نفسي بيده! لتتسعن على من يأتيها من المسلمين كما يتسع الرحم على الولد» قال: قلت: وما المعنق يا نبي الله؟ قال: «جبل بأرض الشام من حمص، على نهر يقال له الأرنط، فتكون ذراري المسلمين في أعلى المعنق، والمسلمون على نهر الأرنط، والمشركون خلف نهر الأرنط يقاتلونهم صباحًا ومساءً، فإذا أبصر ذلك صاحب القسطنطينية وجه في البر إلى قنسرين ستمائة ألف حتى تجيئهم مادة اليمن سبعين ألفًا، ألف الله قلوبهم بالإيمان، معهم أربعون ألفًا من حمير، حتى يأتوا بيت المقدس، فيقاتلون الروم فيهزمونهم، ويخرجونهم من جند إلى جند، حتى يأتوا قنسرين وتجيئهم مادة الموالي» قال: قلت: وما مادة الموالي يا رسول الله؟ قال: " هم عتاقتكم، وهم منكم قوم يجيئون من قبل فارس، فيقولون: تعصبتم يا معشر العرب! لا نكون مع أحد من الفريقين، أو تجتمع كلمتكم، فتقاتل نزار يومًا، واليمن يومًا، والموالي يومًا،

فَيُخْرِجُوْنَ الرُّومَ إِلَى الْعمْقِ، وَيَنْزِلُ الْمُسْلِمُوْنَ عَلَى نَهَرٍ يُقَالُ لَهُ كَذَا وكَذَا، يُغْزَى وَالْمُشْرِكُوْنَ عَلَى نَهَرٍ يُقَالُ لَهُ الرَّقَبَّةُ، وَهُوَ النَّهَرُ الْأَسْوَدُ، فَيُقَاتِلُوْنَهُمْ فَيرْفَعُ اللهُ تَعَالَى نَصْرَهُ عَنِ الْعَسْكَرَيْنِ، وَيُنْزِلُ صَبرَهُ عَلَيْهِمَا، حَتَّى يُقْتَلَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ الثُّلُثُ، وَيَفِرُّ ثُلُثٌ، وَيَبْقَى الثُّلُثُ، فَأَمَّا الثُّلُثُ الَّذِيْنَ يُقْتَلُوْنَ فَشَهِيْدُهُمْ كَشَهِيْدِ عَشَرَةٍ مِنْ شُهَدَاءِ بَدْرٍ، يَشْفَعُ الْوَاحِدُ مِنْ شُهَدَاءِ بَدْرٍ لِسَبْعِينَ، وَشَهِيْدُ الْمَلَاحِمِ يَشْفَعُ لِسَبْعِمِائَةِ، وَأَمَّا الثُّلُثُ الَّذِيْنَ يَفِرُّوْنَ فَإِنَّهُمْ يَفْتَرِقُوْنَ ثَلَاثَةَ أَثْلَاثٍ، ثُلُثٌ يَلْحَقُوْنَ بِالرُّومِ، وَيَقُوْلُوْنَ: لَوْ كَانَ لِلَّهِ بِهَذَا الدِّيْنِ مِنْ حَاجَةٍ لَنَصرَهُمْ، وَهُمْ مُسْلِمَةُ الْعَرَبِ: بَهْرَاءَ وَتَنُوخُ وَطَيِّءٌ وَسُلَيْمٌ، وَثُلُثٌ يَقُوْلُوْنَ: مَنَازِلُ آبَائِنَا وَأَجْدَادِنَا خَيْرٌ، لَا تَنَالُنَا الرُّومُ أَبَدًا، مُرُّوا بِنَا إِلَى الْبَدْوِ، وَهُمُ الْأَعْرَابُ، وَثُلُثٌ يَقُوْلُوْنَ: إِنَّ كُلَّ شَيْءٍ كَاسْمِهِ، وَأَرْضُ الشَّامِ كَاسْمِهَا الشُّؤْمُ، فَسِيرُوْا بِنَا إِلَى الْعِرَاقِ وَالْيَمَنِ وَالْحِجَازِ، حَيْثُ لَا نَخَافُ الرُّومَ ، وَأَمَّا الثُّلُثُ الْبَاقِيْ فَيَمْشِيْ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ يَقُوْلُوْنَ: اللهَ اللهَ، دَعُوْا عَنْكُمُ الْعَصَبِيَّةَ، وَلِتَجْتَمِعْ كَلِمَتُكُمْ وَقَاتِلُوْا عَدُوَّكُمْ، فَإِنَّكُمْ لَنْ تُنْصَرُوْا مَا تَعَصَّبْتُمْ، فَيَجْتَمِعُوْنَ جَمِيْعًا وَيَتَبَايَعُوْنَ عَلَى أَنْ يُقَاتِلُوْا حَتَّى يَلْحَقُوْا بِإِخْوَانِهِمُ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا، فَإِذَا أَبْصَرَ الرُّومُ إِلَى مَنْ قَدْ تَحَوَّلَ إِلَيْهِمْ، وَمَنْ قُتِلَ، وَرَأَوْا قِلَّةَ الْمُسْلِمِيْنَ، قَامَ رُومِيٌّ بَيْنَ الصَّفَّيْنِ مَعَهُ بَنْدٌ فِي أَعْلَاهُ صَلِيْبٌ، فَيُنَادِيْ: غَلَبَ الصَّلِيبُ! غَلَبَ الصَّلِيبُ! فَيَقُوْمُ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ بَيْنَ الصَّفَّيْنِ وَمَعَهُ بَنْدٌ فَيُنَادِيْ: بَلْ غَلَبَ أَنْصَارُ اللهِ! بَلْ غَلَبَ

أَنْصَارُ اللهِ وَأَوْلِيَاؤُهُ! فَيَغْضَبُ اللهُ تَعَالَى عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْلِهِمْ: غَلَبَ الصَّلِيبُ! فَيَقُوْلُ: يَا جِبرِيْلُ! أَغِثْ عِبَادِيْ، فَيَنْزِلُ جِبرِيْلُ فِي مِائَةِ أَلْفٍ مِنَ الْمَلاَئِكَةِ وَيَقُوْلُ: يَا مِيْكَائِيْلُ، أَغِثْ عِبَادِيْ، فَيَنْحَدِرُ مِيكَائِيْلُ فِي مِائَتَيْ أَلْفٍ مِنَ الْمَلاَئِكَةِ، وَيَقُوْلُ: يَا إِسْرَافِيْلُ، أَغِثْ عِبَادِيْ، فَيَنْحَدِرُ إِسْرَافِيْلُ فِي ثَلاَثمائَةِ أَلْفٍ مِنَ الْمَلاَئِكَةِ، وَيُنَزِّلُ اللهُ نَصْرَهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ، وَيُنَزِّلُ بَأْسَهُ عَلَى الْكُفَّارِ، فَيُقْتَلُوْنَ وَيُهْزَمُوْنَ، وَيَسِيْرُ الْمُسْلِمُوْنَ فِي أَرْضِ الرُّوْمِ حَتَّى يَأْتُوْا عَمُّوْرِيَّةَ، وَعَلَى سُوْرِهَا خَلْقٌ كَثِيْرٌ، يَقُوْلُوْنَ: مَا رَأَيْنَا شَيْئًا أَكْثَرَ مِنَ الرُّوْمِ، كَمْ قَتَلْنَا وَهَزَمْنَا وَمَا أَكْثَرَهُمْ فِيْ هَذِهِ الْمَدِيْنَةِ وَعَلَى سُوْرِهَا، فَيَقُوْلُوْنَ: أَمِّنُوْنَا عَلَى أَنْ نُؤَدِّيَ إِلَيْكُمُ الْجِزْيَةَ، فَيَأْخُذُوْنَ الأَمَانَ لَهُمْ وَلِجَمِيْعِ الرُّوْمِ عَلَى أَدَاءِ الْجِزْيَةِ، وَتَجْتَمِعُ إِلَيْهِمْ أَطْرَافُهُمْ، فَيَقُوْلُوْنَ: يَا مَعْشَرَ الْعَرَبِ! إِنَّ الدَّجَّالَ قَدْ خَالَفَكُمْ إِلَى دِيَارِكُمْ، وَالْخَبَرُ بَاطِلٌ، فَمَنْ كَانَ فِيهِمْ مِنْكُمْ فَلاَ يُلْقِيَنَّ شَيْئًا مِمَّا مَعَهُ، فَإِنَّهُ قُوَّةٌ لَكُمْ عَلَى مَا بَقِيَ، فَيَخْرُجُوْنَ فَيَجِدُوْنَ الْخَبَرَ بَاطِلاً، وَتَثِبُ الرُّوْمُ عَلَى مَا بَقِيَ فِي بِلاَدِهِمْ مِنَ الْعَرَبِ فَيَقْتُلُوْنَهُمْ، حَتَّى لاَ يَبْقَى بِأَرْضِ الرُّوْمِ عَرَبِيٌّ وَلاَ عَرَبِيَّةٌ، وَلاَ وَلَدُ عَرَبِيٍّ إِلاَّ قُتِلَ، فَيَبْلُغُ ذَلِكَ الْمُسْلِمِيْنَ فَيَرْجِعُوْنَ غَضَبًا لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، فَيَقْتُلُوْنَ مُقَاتِلَتَهُمْ وَيَسْبُوْنَ الذَّرَارِيَّ، وَيَجْمَعُوْنَ الأَمْوَالَ، لاَ يَنْزِلُوْنَ عَلَى مَدِيْنَةٍ وَلاَ حِصْنٍ فَوْقَ ثَلاَثَةِ أَيَّامٍ حَتَّى يُفْتَحَ لَهُمْ، وَيَنْزِلُوْنَ عَلَى الْخَلِيْجِ، وَيَمُدُّ الْخَلِيْجُ حَتَّى يَفِيْضَ، فَيُصْبِحُ أَهْلُ الْقُسْطَنْطِيْنِيَّةِ يَقُوْلُوْنَ: الصَّلِيْبُ مَدَّ لَنَا بَحْرَنَا، وَالْمَسِيْحُ

نَاصِرُنَا فَيُصْبِحُوْنَ وَالْخَلِيْجُ يَابِسٌ، فَتُضْرَبُ فِيْهِ الأَخْبِيَةُ، وَيَحْسِرُ الْبَحْرُ عَنِ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ، وَيُحِيْطُ الْمُسْلِمُوْنَ بِمَدِيْنَةِ الْكُفْرِ لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ بِالتَّحْمِيْدِ وَالتَّكْبِيْرِ وَالتَّهْلِيْلِ إِلَى الصَّبَاحِ، لَيْسَ فِيهِمْ نَائِمٌ وَلاَ جَالِسٌ، فَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ كَبَّرَ الْمُسْلِمُوْنَ تَكْبِيْرَةً وَاحِدَةً، فَيَسْقُطُ مَا بَيْنَ الْبُرْجَيْنِ، فَتَقُوْلُ الرُّوْمُ: إِنَّمَا كُنَّا نُقَاتِلُ الْعَرَبَ، فَالآنَ نُقَاتِلُ رَبَّنَا وَقَدْ هَدَمَ لَهُمْ مَدِيْنَتَنَا وَخَرَّبَهَا لَهُمْ، فَيَمْكُثُوْنَ بِأَيْدِيْهِمْ، وَيَكِيْلُوْنَ الذَّهَبَ بِالأَتْرِسَةِ، وَيَقْتَسِمُوْنَ الذَّرَارِيَّ حَتَّى يَبْلُغَ سَهْمُ الرَّجُلِ مِنْهُمْ ثَلاَثَمِائَةِ عَذْرَاءَ، وَيَتَمَتَّعُوْا بِمَا فِيْ أَيْدِيْهِمْ مَا شَاءَ اللهُ، ثُمَّ يَخْرُجُ الدَّجَّالُ حَقًّا، وَيَفْتَحُ اللهُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةَ عَلَى يَدِ أَقْوَامٍ هُمْ أَوْلِيَاءُ اللهِ، يَرْفَعُ اللهُ عَنْهُمُ الْمَوْتَ وَالْمَرَضَ وَالسَّقَمَ، حَتَّى يَنْزِلَ عَلَيْهِمْ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ عَلَيْهِ السَّلاَمُ، فَيُقَاتِلُوْنَ مَعَهُ الدَّجَّالَ ".[1]

ژباړه: له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله فرمايلي دي: د مسلمانانو او روميانو (عيسويانو) ترمنځ به صلحه وشي، بيا به مسلمانان او روميان سره يو ځای شي او يو ځل بيا به د روميانو له کوم دښمن سره وجنګيږي، چې په دې جنګ کې به فتح ترلاسه کړي او کوم غنيمت يې چې له دښمن څخه نيولی وي، هغه به دواړه په خپل منځ کې ووېشي.

له دې وروسته به يو ځل بيا مسلمانان او روميان سره يوځای شي او له ايرانيانو سره به جنګ وکړي، د لښکر ګډونوال به ترې ووژني او

---

١- الفتن لنعيم بن حماد: ٣٢٣، رقم: ١٢٢٥، والجامع الكبير للسيوطي: ١٥/ ٢٣٨، رقم: ١٣٥١٥.

اولاد به ترې بنديان کړي. روميان به مسلمانانو ته ووايي: (څنګه چې موږ مخکې غنيمت وېشلی و او تاسو ته مو خپله برخه درکړې وه، اوس تاسو غنيمت ووېشئ او زموږ برخه راکړئ). په دې کې به مسلمانان د غنيمت مال او مشرکان بنديان ووېشي (خو کوم مسلمانان چې له دوی سره بنديان وي، هغه به تقسيم نه کړي). روميان به ووايي: (مسلمانان بنديان هم تقسيم کړئ). مسلمانان به له دې خبرې انکار وکړي. روميان به ووايي: (دا خو د تړون خلاف خبره ده). روميان به د قسطنطنيې پاچا ته ورشي او شکايت به ورته وکړي، چې عربو له موږ سره دوکه او درغلي وکړه (تاسو له موږ سره مرسته وکړئ) ، ځکه چې موږ له مسلمانانو څخه د لښکر او قوت له مخې ډېر يو. د قسطنطنيې پاچا به ورته وايي: (زه له مسلمانانو سره خپله کړې وعده نه شم ماتولی، هغوی له ډېرې مودې راهيسې پر موږ غالبه دي). اخر روميان به د روم پاچا ته شکايت يوسي، نوموړی به له دوی سره د اتيا (۸۰) بيرغونو لاندې يو لښکر د بحر له لارې ملګری کړي، چې تر هر بيرغ لاندې به دولس زره (۱۲۰۰۰) جنګيالي راټول شوي وي (ګويا ټول شمېر به يې نهه سوه شپېته زره (۹٦۰۰۰۰) تنه وي). کله چې دغه لښکر د شام ساحل ته ورسېږي، نو د دوی قومندان به د کښتيو د سوځولو امر وکړي، څو جنګيالي د سر په بدله له دښمن سره وجنګېږي. لښکر به د قومندان امر پر ځای کړي. له دې وروسته به رومي عيسويان له دمشق او معتق پرته د شام ټولې سيمې ونيسي او بيت المقدس (يروشلم) به ويجاړ کړي.

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه پوښتنه وكړه: (په دې وخت كې به د دمشق د مسلمانانو شمېر څومره وي؟) رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته په ځواب كې وفرمايل: (قسم په هغه ذات چې زما روح د هغه په واک كې دی! په دې وخت كې به په دمشق كې د مسلمانانو د پر نفوس وي).

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وايي، چې ما له رسول الله [صلى الله عليه وسلم] څخه پوښتنه وكړه: (اى دالله رسوله! معتق څه شی دی؟). رسول الله [صلى الله عليه وسلم] راته وفرمايل: (دا په شام كې د حمص نهر (وياله) سره د يو غر نوم دی).

د دې ځاى نقشه به په دې ډول وي، چې د مسلمانانو ماشومان به له معتق د پاسه وي، مسلمانان به د (ارنط) ويالې سره او مشركان به (ارنط) ويالې شاته پراته وي، دوی به سهار او ماښام پر يو بل بريدونه كوي.

كله چې د قسطنطنيې پاچا دا نقشه وګوري، نو (قنسرين) ته به د شپېږو لكو كسانو لښكر د وچې له لارې ورولېږي، له مسلمانانو سره به د يمنيانو يو لښكر مخ شي، چې شمېر به يې اويا زره (۷۰،۰۰۰) تنه وي او له يمنيانو سره به د (حمير) قبيلې څلوېښت زره (۴۰،۰۰۰) كسان ملګري شي، الله تعالى به د دوی زړونه دايمان له يو بل په وسيله يو ځاى كړي وي. كله چې دغه لښكر بيت المقدس ته ورسېږي، نو له روميانو سره به وجنګېږي، په پاى كې به هغوی ته ماتې وركړي او خلک به بېرته قنسرين ته ورشي.

د ازادو شوو غلامانو يو لښكر به (له ايران څخه) د عربانو مرستې ته راشي او ويه وايي: (اى عربو! د تعصب خبرې پرېږدئ! څو پورې چې موږ او تاسو سره يو موټى شوي نه يو، نو موږ به په تاسو دواړو كې له هېڅا سره مرسته ونه كړو). كله به د غلامانو دغه لښكر له عربو، كله به له يمنيانو او كله به له كافرانو سره جنګېږي. مسلمانان به عيسويان ترې لرې غونډيو پورې وځغلوي. مسلمانان به له يو نهر سره يو راټول شي او د يو بل د خبر په اخيستلو كې به مصروف شي او كافران به د (رقية) نهر سره راټول شي، دې ته (نهر اسود) هم وايي.

له دې وروسته به د مسلمانانو او مشركانو تر منځ جګړه ونښلي، خو الله تعالى به له دواړو لښكرو څخه فتح او كاميابي واخلي او په زړونو كې به يې صبر واچوي. (په درېو برخو كې به) يوه مسلمانان شهيدان شي، يوه برخه به وتښتي او يوه برخه به پاتې شي.

د دې لښكر د شهيدانو اجر به د بدر د لسو شهيدانو له اجر سره برابر وي، چې د بدر شهيد به د اويا تنو شفاعت كوي او د دې لښكر شهيد به د اوو سوو (۷۰۰) كسانو شفاعت كوي.

د دې لښكر تښتېدلي كسان به په درېو برخو ووېشل شي، يوه برخه به يې مرتده شي او له روميانو سره به يوځاى شي او ويه وايي: (كه الله تعالى دې دين ته اړتيا لري، نو خپله دې ساتنه وكړي). دوى به د هراء، تنوخ، طيء او سليح سيمو عربان وي. يوه برخه به په كې كليوال بانده چيان وي، دوى به خپلو كليو ته روان وي او وايي به: (زموږ لپاره خپل پلرنى وطن غوره دى، هېڅكله موږ ته روميان نه

شي رارسېدلی». اخري برخه کسان به ووايي: «په هر شي د دې اغېزه پرېوتې ده، نو ځکه خو دا شام هم د خپل نوم په شان سپېره دی، موږ عراق، یمن او حجاز ته بوځئ، هلته به له رومیانو څخه په هېڅ اندېښنه کې نه یو».

بله درېيمه برخه خلک به په خپل منځ کې ووايي: «راځئ چې اوس له تعصب څخه لاس واخلو او سره یو موټی شو، ټول له دښمن سره وجنگېږئ، همدا تعصب زموږ د بریالیتوب پر وړاندې خنډ شوی دی».

له دې وروسته به دوی سره یو موټی شي او په دې تکل به وجنگېږي، چې موږ به هم له خپلو شهیدانو ورونو سره یو ځای شو. کله چې رومیانو ته د مسلمانانو د کموالي پته ولگي، چې یوه برخه یې ووژل شو، بله برخه یې له موږ سره ملگرې شوه او اوس یوازې یوه برخه یې پاتې ده، نو یو شخص به د صلیب بیرغ راپورته کړي او وبه وايي: «صلیب غالبه شو! صلیب غالبه شو!». په دې کې به یو مسلمان د دواړو صفونو تر منځ بیرغ پورته کړي او وبه وايي: «د الله تعالی کومکیان او انصار غالبه شو».

د رومیانو پر دې چغه به الله تعالی په غوسه شي او په شپږسوه زره (۶۰۰،۰۰۰) ملایکو به له مسلمانانو سره مرسته وکړي، سل زره (۱۰۰،۰۰۰) به له جبریل علیه السلام سره وي، دوه سوه زره (۲۰۰،۰۰۰) به له میکاییل علیه السلام سره وي او درې سوه زره (۳۰۰،۰۰۰) به له اسرافیل علیه السلام سره وي. الله تعالی به د مسلمانانو مرسته وکړي او پر کافرانو به خپل قهر نازل کړي. کافران به په ډېر ناوړه

دول ووژل شي او څوک چې پاتې شي، هغوی به له ډېرې رسوايي او شرم سره ماتې وخوري

له دې وروسته به مسلمانان د روم هېواد ته ننوځي او تر (عموريه) پورې به لاړ شي. د عموريه په سرحد به ډېر خلک راټول شي. كله چې مسلمانان دغه خلك ويني، نو حيران به شي، چې روميان څومره ډېر راغلي دي، څومره مو ووژل او څومره كسانو ته مو ماتې وركړه، بيا يې هم همدا حال دی، چې عموريه او شاوخوا سيمه ترې ډكه ده. د هغه ځای خلک به له مسلمانانو سره په جزيه د امن غوښتنه وكړي، مسلمانان به يې هم ورسره ومني او ټولو ته به پناه وركړي. بيا به په شاوخوا سيمو كې روميان دا پروپاگند جوړ كړي، چې دجال د مسلمانانو پلرني وطن ته راغلی دی. دا به بې اساسه خبره وي. رسول الله صلی الله عليه وسلم په دې وخت كې شتو خلكو ته نصيحت كوي، چې له روم څخه ترلاسه شوی غنيمت هېڅكله پرېنږدي، هغه به يې په راتلونكو جنگونو كې پكار شي. مسلمانان به هلته لاړ شي، وروسته به ورته معلومه شي، چې هغه هسې پروپاگند و. بل خوا (كله چې مسلمانان د دجال په اړه معلوماتو ته لاړ شي، نو) روميان به پر پاتې مسلمانانو حمله وكړي او هغوی به ټول ووژني، تر دې چې په روم كې به دعربو هېڅ نارينه او ښځه پاتې نه شي؛ روميان به دمسلمانانو ټول نسل له منځه يوسي. كله چې مسلمانان له دې حالت څخه خبر شي، نو ډېر په غوسه به شي او بېرته به راستانه شي، هغوی به يو ځل بيا له دوی سره وجنگېږي، دا ځل به مسلمانان د عيسويانو جنگيالي ووژني او اولاده به يې بنديان

کړي، ټول مالونه به هم ترې واخلي. دا مسلمانان چې په کوم ښار يا کلا څخه تېرېږي، الله تعالی به په درېو ورځو کې دوی ته کاميابي وربه برخه کړي. کله چې مسلمانان سمندر ته ورسېږي، نو هغه به هم ډک شي. کله چې عيسويان دا حالت ووينې، نو وبه وايي: د صليب له برکته سمندري سطحه زموږ د ساتنې لپاره ډکه شوه او مسيح زموږ مرستندوی دی.

کله چې سهار شي، نو سمندر به وچ شوی وي، سمندر به خپل لوری له قسطنطنيې څخه واړوي. سمدستي به په کې خپلې خېمې ودروي. بل خو د جمعې په شپه به مسلمانان د کفر دغه ښار محاصره کړي او تر سهاره پورې به د الحمد لله، الله اکبر او لا اله الا الله نارې وهي، نه به څوک ويده شي او نه به څوک کېني. سهار به مسلمانان په يو غږ دالله اکبر ناره کړي، په دې وخت کې به د ښار يو طرف ولوېږي. روميان به حيرانه شي او وبه وايي: «مخکې خو مو له عربانو سره جنګ کاوه، اوس الله تعالی راسره نېغ په نېغه جنګ کوي، الله تعالی د مسلمانانو لپاره زموږ ښار هم تس نس کې»

له دې وروسته به مسلمانان لږ وځنډېږي، د غنيمت سره زر به ډېر ډېر ووېشي، د کافرانو اولادونه به هم ووېشي «ښځې به دومره ډېرې وي، چې» د يو سړي ته به درې سوه (۳۰۰) ښځې ورسېږي؛ مسلمانان به تر يوې مودې پورې له دې غنيمت څخه ګټه اخلي.

له دې وروسته به دجال په رښتينې ډول راووځي او قسطنطنيه به د الله تعالی د داسې نېکانو بنده ګانو په لاسونو فتح شي، چې ژوندي او روغ رمټ پاتې شوي وي. نه به ناروغه شي او نه به يې کومه

ناروغي وځپي، تر دې چې عيسىٰ [عليه السلام] به (له اسمان څخه) راكوز شي او د مسلمانانو دا ډله به د عيسىٰ [عليه السلام] په ملتيا له دجال (او د يهودانو د لښكر) سره وجنګېږي)).

**قيامت به كله راځي؟ د صحيح مسلم څو روايتونه:**

د نعيم بن حماد له ذكر شوو روايتونو وروسته اوس د صحيح مسلم څو روايتونه رانقلوو:

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتَّى يَنْزِلَ الرُّوْمُ بِالْأَعْمَاقِ أَوْ بِدَابِقٍ، فَيَخْرُجُ إِلَيْهِمْ جَيْشٌ مِنَ الْمَدِيْنَةِ، مِنْ خِيَارِ أَهْلِ الْأَرْضِ يَوْمَئِذٍ، فَإِذَا تَصَافُّوْا، قَالَتِ الرُّوْمُ: خَلُّوْا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الَّذِيْنَ سَبَوْا مِنَّا نُقَاتِلْهُمْ، فَيَقُوْلُ الْمُسْلِمُوْنَ: لَا، وَاللهِ لَا نُخَلِّيْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ إِخْوَانِنَا، فَيُقَاتِلُوْنَهُمْ، فَيَنْهَزِمُ ثُلُثٌ لَا يَتُوْبُ اللهُ عَلَيْهِمْ أَبَدًا، وَيُقْتَلُ ثُلُثُهُمْ، أَفْضَلُ الشُّهَدَاءِ عِنْدَ اللهِ، وَيَفْتَتِحُ الثُّلُثُ، لَا يُفْتَنُوْنَ أَبَدًا فَيَفْتَتِحُوْنَ قُسْطَنْطِينِيَّةَ، فَبَيْنَمَا هُمْ يَقْتَسِمُوْنَ الْغَنَائِمَ، قَدْ عَلَّقُوْا سُيُوْفَهُمْ بِالزَّيْتُوْنِ، إِذْ صَاحَ فِيْهِمِ الشَّيْطَانُ: إِنَّ الْمَسِيْحَ قَدْ خَلَفَكُمْ فِي أَهْلِيْكُمْ، فَيَخْرُجُوْنَ، وَذَلِكَ بَاطِلٌ، فَإِذَا جَاءُوا الشَّأْمَ خَرَجَ، فَبَيْنَمَا هُمْ يُعِدُّوْنَ لِلْقِتَالِ، يُسَوُّوْنَ الصُّفُوْفَ، إِذْ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ، فَيَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَمَّهُمْ، فَإِذَا رَآهُ عَدُوُّ اللهِ، ذَابَ

كَمَا يَذُوبُ الْمِلْحُ فِي الْمَاءِ، فَلَوْ تَرَكَهُ لَانْذَابَ حَتَّى يَهْلِكَ، وَلَكِنْ يَقْتُلُهُ اللهُ بِيَدِهِ، فَيُرِيهِمْ دَمَهُ فِي حَرْبَتِهِ.»[۱]

ژباړه: له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی، هغه چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: «قيامت به تر هغې پورې رانه شي، څو پورې چې روميانو (عيسويانو) په اعماق يا دابق [۲] کې پړاو وانه چوي. بيا به له روميانو سره د مقابلې لپاره له مدينې منورې څخه يو لښکر روان شي، چې په هغه وخت کې به په ټولو مسلمانانو کې غوره خلک وي. کله چې دوی صفونه تيار کړي، نو روميان به ووايي: (تاسو (مسلمانان) زموږ او زموږ د بنديانو له منځ څخه ووځئ او موږ پرېږدئ، چې له هغوی سره وجنګېږو). مسلمانان به ورته ووايي: (په الله تعالی قسم! موږ به ستاسو او د خپلو ورونو له منځ څخه لرې نه شو). له دې وروسته به دواړه لښکرې وجنګېږي، چې د مسلمانانو درېيمه برخه خلک به وتښتي؛ الله تعالی به دغه تښتېدلي خلک هېڅکله معاف نه کړي. د لښکر بله درېيمه برخه به شهيدان شي، چې د قيامت په ورځ به د الله تعالی په نزد تر ټولو غوره شهيدان وي او پاتې درېيمه برخه خلک به فتح ومومي. (د الله تعالی له لوري به پر دوی دا لوی نعمت وي،چې) د دې جګړې فاتحان به هېڅکله له کوم مصيبت سره مخ نه شي. دا خلک به قسطنطنيه هم فتح کړي. دوی به د زيتونو په ونو کې خپلې تورې راځوړندې کړي او غنيمت به وېشي،

---

۱- مسلم، کتاب الفتن: ۲/ ۳۹۲، رقم: ۲۸۹۷.

۲- حلب او انطاکيه ته نږدې په شام کې دوه ښارونه دي.

چې په دې کې به شیطان ناځاپي غږ وکړي: «دجال ستاسو په نشتوالي او نه موجودیت کې ستاسو تر کورونو ورسېده «دا به د دروغو خبر وي». دغه مسلمانان «به هر څه پرېږدي او» به ووځي. کله چې دوی شام ته ورسېږي، نو دجال به راوتلی وي. مسلمانان به د جنګ لپاره چمتووالی نیسي، چې د لمانځه وخت به هم راشي. په دې کې به عیسیٰ [علیه السلام] «له اسمان څخه» راکوز شي، نو د هغوی امامتي به وکړي. کله چې د الله تعالی دښمن دجال عیسیٰ [علیه السلام] ووینې، نو داسې به ویلي شي، لکه مالګه چې په اوبو کې ویلي کېږي. که عیسیٰ [علیه السلام] دجال همداسې هم پرېږدي، نو هغه به ویلي شي، خو الله تعالی به یې د عیسیٰ [علیه السلام] په لاس ووژني ؛ بیا به عیسیٰ [علیه السلام] د هغه وینه په خپله نېزه کې خلکو ته وښیي»».

**د جګړې د رامنځ ته کېدو اسباب:**

دغه جګړه به له دوه لاملونو څخه رامنځ ته شي:

۱- لومړی دا چې په حدیث کې دا الفاظ راغلي: خَلُّوْا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الَّذِيْنَ سَبَوْا مِنَّا نُقَاتِلْهُمْ، د دې تفصیل په لاندې ډول دی:

په حدیث کې د «سَبَوْا» کلمه دوه ډوله رانقل شوې ده، چې د یو سَبَوْا مطلب دا دی، چې عیسویان به مسلمانانو ته ووایي، چې تاسو زموږ او د هغو مجاهدینو له منځه ووځئ، چې زموږ عسکر او جنګیالي یې بندیان کړي دي.

د دويم (سُبُوْا) مطلب دا دی، چې تاسو موږ ته هغه عسکر وسپارئ، چې له موږ څخه مو بنديان کړي دي. د حديث له دې الفاظو (لَا، وَاللهِ لَا نُخَلِّيْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ إِخْوَانِنَا) څخه داسې معلومېږي، چې دا عيسوي بنديان به مسلمانان شوي وي، حافظ ابن کثير رحمه الله په النهاية نومي کتاب (۷۸) مخ کې هم دې ته راجع قول ويلی دی.[۱]

۲- د دې جګړې دوه لامل به دا وي، له دې جګړې څخه څه موده مخکې چې اسلامي لښکر او روميانو چې يو ځای پر ايران بريد کوي، نو د غنيمت د تقسيم په وخت کې د بنديانو پر سر لانجه پيدا شي، ځکه چې د ايران په بنديانو کې به ځينې مسلمانان بنديان هم وي، چې يا به يې له جنګ څخه وروسته ايمان راوړی وي او يا به مخکې مسلمانان شوي وي، خو دوی به د ملکي سياست له مخې دې ته مجبوره شوي وي، چې په جګړه کې برخه واخلي.

لاندې روايت د دې احتمال تائيد کوي:

عَنْ ذِيْ مَخْبَرِ ابْنِ أَخِي النَّجَاشِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: " تُصَالِحُوْنَ الرُّوْمَ عَشْرَ سِنِيْنَ صُلْحًا آمِنًا، يَفُوْنَ سَنَتَيْنِ ويَغْدِرُوْنَ فِي الثَّالِثَة، أَوْ يَفُوْنَ أَرْبَعًا ويَغْدِرُوْنَ فِي الْخَامِسَة، فَيَنْزِلُ جَيْشًا مِنْكُمْ فِيْ مَدِيْنَتِهِمْ فَتَغْزُوْنَ أَنْتُمْ وَهُمْ عَدُوًّا مِنْ وَرَائِكُمْ وَوَرَائِهِمْ، فَتُقَاتِلُوْنَ ذَلِكَ الْعَدُوَّ، فَيَفْتَحُ اللهُ لَكُمْ، فَتَنْصَرِفُوْنَ بِمَا أَصَبْتُمْ مِنْ أَجْرٍ وَغَنِيْمَةٍ، فَتَنْزِلُوْنَ بِمَرْجٍ، ذِيْ تُلُوْلٍ، فَيَقُوْلُ قَائِلُكُمْ:

---

۱- المهدي: ۱۴۱.

اللهُ غَلَبَ، وَيَقُولُ قَائِلُهُمُ الصَّلِيبُ غَلَبَ، فَيَتَدَاوَلُونَهَا فَيَغْضَبُ الْمُسْلِمُونَ، وَصَلِيبُهُمْ مِنْهُمْ غَيْرُ بَعِيدٍ، فَيَثُورُ ذَلِكَ الْمُسْلِمُ إِلَى صَلِيبِهِمْ فَيَدُقُّهُ، وَيَبْرُزُونَ إِلَى كَاسِرِ صَلِيبِهِمْ، فَيَضْرِبُونَ عُنُقَهُ، فَتَثُورُ تِلْكَ الْعِصَابَةُ مِنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَى أَسْلِحَتِهِمْ، وَيَثُورُ الرُّومُ إِلَى أَسْلِحَتِهِمْ، فَيَقْتُلُونَ تِلْكَ الْعِصَابَةَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ يُسْتَشْهَدُونَ، فَيَأْتُونَ مَلِكَهُمْ فَيَقُولُونَ: قَدْ كَفَيْنَاكَ حَدَّ الْعَرَبِ وَبَأْسَهُمْ، فَمَاذَا تَنْتَظِرُ؟ فَيَجْمَعُ لَكُمْ حَمْلَ امْرَأَةٍ ثُمَّ يَأْتُونَكُمْ تَحْتَ ثَمَانِينَ غَايَةٍ تَحْتَ كُلِّ غَايَةٍ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا ".[۱]

ژباړه: له ذي مخبر د نجاشي له ورور څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به فرمايل: تاسو به له روميانو سره د لسو کالو لپاره په امن صلحه وکړئ. هغوی به دوه کاله پرې دې صلحه ټينګ ولاړ وي او په درېيم کال به درغلي وکړي يا رسول الله صلی الله عليه وسلم دا وفرمايل: هغوی به څلور کاله په دې تړون ټينګ ولاړ وي او په پنځم کال به درغلي وکړي.(د صلحې په دې موده کې به) ستاسو يو لښکر د هغوی هېواد ته ورشي، بيا به تاسو او هغوی يو ځای د دواړو له يو پټ دښمن سره وجنګېږئ، تاسو به پر هغه دښمن غلبه ترلاسه کړئ او فتح به مو په برخه شي، د الله تعالی له اجر او غنيمت سره به راستانه شئ. بيا به تاسو پر يوه کوچني غره له پاسه پړاو واچوئ. په تاسو کې به يو تن ووايي: (الله تعالی غالبه شو. له دښمن

۱- المعجم الكبير للطبراني.

څخه به يو تن ووايي: (صليب غالب شو). بيا به هغوى ځغې وهي، صليب به لړ لرې وي، په دې شيبه كې به هغه مسلمان ځان چمتو كړي، د صليب په لوري به ورمنډه كړي او هغه به تس نس كړي. عيسويان به د صليب ماتوونكي په لور ورمنډه كړي او له هغه څخه به سر ووهي. له دې وروسته به مسلمانان او عيسويان خپلې وسلې راپورته كړي، هغوى به د مسلمانانو دغه ډله ټول شهيدان كړي، بيا به دغه عيسويان خپل پاچا ته ورشي او ورته به ووايي چې موږ پر تاسو د مسلمانانو پابندي او دبدبه مو له منځه يوړه، نو اوس څه ته ګورو؟ له دې وروسته به ډېر عيسويان ستاسو په طرف در روان شي، هغوى به اتيا (۸۰) برخې وي او د هرې برخې لاندې به دولس زره (۱۲۰۰۰) عسكر وي.

د شام د فتحې په اړه له مشهور صحابي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه تفصيلي حديث روايت شوى دى:

عَنْ يُسَيْرِ بْنِ جَابِرٍ، قَالَ: هَاجَتْ رِيْحٌ حَمْرَاءُ بِالْكُوْفَةِ، فَجَاءَ رَجُلٌ لَيْسَ لَهُ هِجِّيرَى إِلَّا: يَا عَبْدَ اللهِ بْنَ مَسْعُودٍ جَاءَتِ السَّاعَةُ، قَالَ: فَقَعَدَ وكَانَ مُتَّكِئًا، فَقَالَ: إِنَّ السَّاعَةَ لَا تَقُوْمُ، حَتَّى لَا يُقْسَمَ مِيرَاثٌ، وَلَا يُفْرَحَ بِغَنِيْمَةٍ، ثُمَّ قَالَ: بِيَدِهِ هَكَذَا - وَنَحَّاهَا نَحْوَ الشَّأْمِ - فَقَالَ: عَدُوٌّ يَجْمَعُوْنَ لِأَهْلِ الْإِسْلَامِ، وَيَجْمَعُ لَهُمْ أَهْلُ الْإِسْلَامِ، قُلْتُ: الرُّوْمَ تَعْنِيْ؟ قَالَ: نَعَمْ، وَتَكُوْنُ عِنْدَ ذَاكُمُ الْقِتَالِ رَدَّةٌ شَدِيْدَةٌ، فَيَشْتَرِطُ الْمُسْلِمُوْنَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ لَا تَرْجِعُ إِلَّا غَالِبَةً، فَيَقْتَتِلُوْنَ

حَتَّى يَحْجُزَ بَيْنَهُمُ اللَّيْلُ، فَيَفِيءُ هَؤُلَاءِ وَهَؤُلَاءِ، كُلٌّ غَيْرُ غَالِبٍ، وَتَفْنَى الشُّرْطَةُ، ثُمَّ يَشْتَرِطُ الْمُسْلِمُوْنَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ، لَا تَرْجِعُ إِلَّا غَالِبَةً، فَيَقْتَتِلُوْنَ حَتَّى يَحْجُزَ بَيْنَهُمُ اللَّيْلُ، فَيَفِيءُ هَؤُلَاءِ وَهَؤُلَاءِ، كُلٌّ غَيْرُ غَالِبٍ، وَتَفْنَى الشُّرْطَةُ، ثُمَّ يَشْتَرِطُ الْمُسْلِمُوْنَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ، لَا تَرْجِعُ إِلَّا غَالِبَةً، فَيَقْتَتِلُونَ حَتَّى يُمْسُوْا، فَيَفِيءُ هَؤُلَاءِ وَهَؤُلَاءِ، كُلٌّ غَيْرُ غَالِبٍ، وَتَفْنَى الشُّرْطَةُ، فَإِذَا كَانَ يَوْمُ الرَّابِعِ، نَهَدَ إِلَيْهِمْ بَقِيَّةُ أَهْلِ الْإِسْلَامِ، فَيَجْعَلُ اللهُ الدَّبْرَةَ عَلَيْهِمْ، فَيَقْتُلُوْنَ مَقْتَلَةً - إِمَّا قَالَ لَا يُرَى مِثْلُهَا، وَإِمَّا قَالَ لَمْ يُرَ مِثْلُهَا - حَتَّى إِنَّ الطَّائِرَ لَيَمُرُّ بِجَنَبَاتِهِمْ، فَمَا يُخَلِّفُهُمْ حَتَّى يَخِرَّ مَيْتًا، فَيَتَعَادُّ بَنُو الْأَبِ، كَانُوْا مِائَةً، فَلَا يَجِدُوْنَهُ بَقِيَ مِنْهُمْ إِلَّا الرَّجُلُ الْوَاحِدُ، فَبِأَيِّ غَنِيْمَةٍ يُفْرَحُ؟ أَوْ أَيُّ مِيْرَاثٍ يُقَاسَمُ.»[١]

ژباړه: له يسير بن جابر نه روايت دی هغه وايي چې: «يو ځل په كوفه كې سور طوفان راغی، يو سړی چې تكيه كلام يې (جاءت الساعة؟) و، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته راغی او پوښتنه يې ترې وكړه: ايا قيامت راغی؟). عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ورته وفرمايل: (قيامت به تر هغې پورې رانه شي، چې خلك د ميراث ويشل بند كړي او د غنيمت په مال يې خوشحالي پرېښې نه وي). بيا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په خپلو لاسونو شام ته اشاره وكړه

---

١- مسلم: ٢/ ٣٩٢، رقم: ٢٨٩٩.

او ويې فرمايل: (له مسلمانانو سره به جنګ ته دښمن راټول شي او مسلمانان به د هغوی په مقابل کې راټول شي). راوي وايي: ما ترې پوښتنه وکړه: ايا تاسو له هغوی (دښمن) څخه روميان (عيسويان) مرادوئ؟ عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وفرمايل: (هو!). او بيا يې زياته کړه: (د دې جګړې په سر کې به لړه ماتې وشي، بيا به له اسلامي لښکر څخه يوه ډله په دې شرط د جنګ ډګر ته ودانګي، چې يا به شهيدان کېږي او يا به فتح کوي. دوی به جګړه پيل کړي، تر دې چې شپه راشي او دواړه لښکرې به پرته له فتحې او ماتې څخه بېرته ستانه شي او د مسلمانانو دا ډله به شهيدان شي.

مسلمانان به (دويم ځل) بيا د لښکر څخه يوه ډله په دې شرط ولېږي، چې يا به شهيدان کېږي او يا به فتح مومي. دوی به تر شپې پورې وجنګېږي، خو دواړه لښکرې به پرته له فتحې او ماتې څخه ستانه شي او د مسلمانانو دا ډله به شهيدان شي.

مسلمانان به (درېيم ځل) په دې شرط يوه ډله ولېږي، چې يا به شهيدان کېږي او يا به فتح مومي. دوی به تر ماښامه پورې وجنګېږي، پرته له فتحې او ماتې به بېرته ستانه شي او دا ډله به شهيدان شي.

کله چې څلورمه ورځ شي، نو پاتې مسلمانان به د دښمن په لور وخوځېږي، نو الله تعالی به دښمن ته ماتې ورکړي، ځکه چې دا به داسې جګړه وي، چې داسې جګړه به هېڅکله ونه وينې يا (ابن مسعود [رضي الله عنه] داسې وفرمايل، چې) داسې جګړه به هېڅکله چا ليدلې نه وي، تر دې چې يوه مرغۍ به د مړو له پاسه

تېره شي او مخکې له دې چې د مړو له ساحې څخه ووځي، مړه به شي (یعنې مړي به دومره زیات وي).

په دې وخت کې چې یوه کورنۍ خپل ځانونه وشمېري، نو یوازې یو فیصد کسان به یې ژوندي پاتې شوي وي، نو دوی به څنګه په غنیمت خوشحاله شي او یا به څنګه میراث تقسیم کړي؟)).

**یادونه:** که څه هم په هغه وخت کې به د شام زیاتره سیمې د رومیانو تر تسلط لاندې وي، خو بیا هم ځینې سیمې به (غالبا دمشق او شاوخوا سیمې) د مسلمانانو تر ولکې لاندې وي.

**عیسویان به له اویا بیرغونو لاندې راغونډ شي:**

په ځینو روایتونو کې راغلي، چې په شام کې کوم عیسوي پوځ وي، هغه به د اویا (۷۰) بیرغونو لاندې راټول شوي وي او د هر بیرغ لاندې به دولس زره (۱۲۰۰۰) جنګیالي وي، چې مجموعه به یې اته سوه څلوېښت زره (۸۴۰،۰۰۰) تنه وي او په ځینو نورو روایتونو کې نور تعداد هم ښودل شوی دی، لکه مخکې چې تېر شو، په لاندې روایتونو کې هم شمېر یې نهه سوه شپېته زره (۹۶۰،۰۰۰) ښودل شوی دی.

عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَرْفُوْعًا فِيْ حَدِيْث طَوِيْل، فِيْهِ: ثُمَّ هُدْنَةٌ تَكُوْنُ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ بَنِي الأَصْفَرِ، فَيَغْدِرُوْنَ فَيَأْتُوْنَكُمْ تَحْتَ ثَمَانِيْنَ غَايَةً، تَحْتَ كُلِّ غَايَةٍ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا ". [۱]

---

۱- بخاري: ۱/ ۴۵۱.

ژباړه: له عوف بن مالک رضي الله عنه څخه په يو اوږد حديث کې روايت شوی دی، چې له قيامت څخه مخکې يوه علامه به دا هم وي، چې ستاسو او د روميانو تر منځ به صلحه وشي، بيا به هغوی تړون مات کړي او د اتيا بيرغونو لاندې به ستاسو په طرف راروان شي، چې تر هر بيرغ لاندې به دولس زره جنګيالي وي.

له عوف بن مالک رضي الله عنه څخه په بل حديث کې نقل شوي دي: «ستاسو او روميانو تر منځ به صلحه وشي، هغوی به ستاسو په لور تر اتيا بيرغونو لاندې راروان شي، چې تر هر بيرغ لاندې به دولس زره جنګيالي وي، په دې وخت کې به مسلمانان د «غوطه» نومي سيمه کې پړاو اچولی وي، چې په دمشق کې واقع دی». [۱]

## د قسطنطنيه (استنبول) فتح

### ۳- اقدامي جګړه:

کله چې شام فتح شي، نو مهدي به د عيسوي مرکزونو او د روم، ايټاليې او داسې نورو هېوادونو زياترو سيمو، بلکې د سياسي تقسيم مطابق سيمو د فتح کولو لپاره روان شي.

علامه ابن جرير طبري رحمه الله په خپل نامتو تفسير کې د ﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ أَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ وَ سَعٰى فِيْ خَرَابِهَا ۭ أُولٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَنْ يَّدْخُلُوْهَآ إِلَّا خَآئِفِيْنَ ۭ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ وَّ لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ۝﴾ ايت لاندې ليکي:

---

۱- مسند احمد، حسب ترتيب الفتح الرباني: ۲۴/ ۲۴ – ۲۵.

«و اولي التاويلات التي ذكرتها بتاويل الاية قول من قال عنى الله عزو جل بقوله: ﴿ وَ مَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ ﴾ النصارىٰ و ذلك بانهم الذين سعوا في خراب بيت المقدس واعانوا بختنصر على ذلك ومنعوا مؤمني بني اسرائيل من الصلوة فيه بعد منصرف بختنصر عنهم الى بلاده».

**يعنې له دې ايت څخه رومي عيسويان مراد دي، چې د بيت المقدس په ويجاړولو کې يې له بخت نصر سره مرسته کړې ده او کله چې بخت نصر بېرته ستون شو، نو دوی د بني اسرائيلو مسلمانان په بيت المقدس کې له لمانځه څخه ايسار کړل. نوموړی د ﴿لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ ﴾ په تفسير کې يو حديث نقل کړی دی:** حدثنا موسىٰ قال حدثنا عمرو قال حدثنا اسباط عن السدي قوله: ﴿لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ ﴾ اما خزيهم في الدينا فانهم اذا قام المهدي وفتحت القسطنطنية قتلهم فذلك الخزي. الخ.[1]

**يعنې له دې څخه دقسطنطنيه (استنبول) فتح او درومیانو وژنه مراد ده.**

**کله چې مهدي اروپا او داسې نورې سيمې فتح کړي، نو له دې وروسته به قسطنطنيې ته مخه کړي، په داسې حال کې چې عيسويانو به قسطنطنيه غصب کړې وي. قسطنطنيه يوه جزيره نما**

---

۱- تفسير طبري: ۱/ ۳۹۸ - ۳۹۹.

ښار دی او له احاديثو داسې ښکاري، چې د مهدي په وخت کې به له قسطنطنيې څخه ښاري د پوالونه چاپېره وي.

**د قسطنطنيې د فتحې په اړه د صحيح مسلم روايت:**

د قسطنطنيې د فتحې په اړه د صحيح مسلم په كتاب الفتن كې يو حديث روايت شوی دی، چې وايي:

عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «سَمِعْتُمْ بِمَدِيْنَةٍ جَانِبٌ مِنْهَا فِي الْبَرِّ وَجَانِبٌ مِنْهَا فِي الْبَحْرِ؟» قَالُوْا: نَعَمْ، يَا رَسُوْلَ اللهِ! قَالَ: " لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتَّى يَغْزُوْهَا سَبْعُوْنَ أَلْفًا مِنْ بَنِيْ إِسْحَاقَ، فَإِذَا جَاءُوْهَا نَزَلُوْا، فَلَمْ يُقَاتِلُوْا بِسِلَاحٍ وَلَمْ يَرْمُوْا بِسَهْمٍ، قَالُوْا: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ، فَيَسْقُطُ أَحَدُ جَانِبَيْهَا - قَالَ ثَوْرٌ: لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا قَالَ - الَّذِيْ فِي الْبَحْرِ، ثُمَّ يَقُوْلُوْا الثَّانِيَةَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ، فَيَسْقُطُ جَانِبُهَا الْآخَرُ، ثُمَّ يَقُوْلُوْا الثَّالِثَةَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ، فَيُفَرَّجُ لَهُمْ، فَيَدْخُلُوْهَا فَيَغْنَمُوْا، فَبَيْنَمَا هُمْ يَقْتَسِمُوْنَ الْمَغَانِمَ، إِذْ جَاءَهُمُ الصَّرِيْخُ، فَقَالَ: إِنَّ الدَّجَّالَ قَدْ خَرَجَ، فَيَتْرُكُوْنَ كُلَّ شَيْءٍ وَيَرْجِعُوْنَ "

ژباړه: له ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم صحابه كرامو ته وفرمايل: «ايا هغه ښار پېژنئ، چې يوې خوا ته يې وچه او بلې خوا ته يې سمندر دی؟». صحابه كرامو وويل: «هو!». رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل:

((تر هغې پورې به قيامت رانه شي، چې د بنو اسحاق يا بنو اسماعيل اويا زره تنه مسلمانانو پر دې ځای برید نه وي کړی. کله چې مسلمانان دې ښار ته ورسېږي او هلته پړاو واچوي، نو نه به په وسله قتال وکړي او نه به غشي وولي، بس دا مسلمانان به د لا اله الا الله والله اکبر نارې کړي، د دې نارې له برکته به د ښار یو د ېوال ولوېږي. (ثور بن يزيد رحمه الله راوي وايي: (زما په فکر دا د ېوال به د سمندر خواته وي). مسلمانان به بيا د لا اله الا الله والله اکبر نارې کړي ، نو د ښار بل د ېوال به ولوېږي، بيا دریيم ځل به د لا اله الا الله والله اکبر نارې کړي، چې له دې سره به مسلمانانو ته لاره خلاصه شي او ښار ته به له فتحې سره ننوځي. له دې وروسته به دوی غنيمتونه ووېشي، په دې وخت کې به شيطان غږ وکړي: (دجال رابښکاره شوی دی). د دې خبرې په اورېدو سره به ټول مسلمانان (د حفاظت په نيت) هر څه پرېږدي او خپلو کورونو ته به ستانه شي)).

**د روایت تحقیق:**

د حديث د (سَبْعُوْنَ اَلْفًا مِنْ بَنِيْ اِسْحٰق) په اړه ځينې محدثين وايي، چې له دې څخه په اصل کې (بَنِيْ اِسْمٰعِيْل) مراد دي، خو بيا هم د صحيح مسلم په ټولو نسخو کې د (مِنْ بَنِيْ اِسْحٰق) الفاظ راغلي دي.

**علامه نووي رحمه الله ليکي:**

قال القاضي: كذا هو في جميع اصول صحيح مسلم (من بني اسحق) قال: قالَ بعضهم: المعروف المحفوظ (من بني

اسمعیل). وهو الذي یدل علیه الحدیث وسیاقه لانه انما اراد العرب وهذه المدینة هي القسطنطنیة.[۱]

ژباړه: د (من بني اسحق) الفاظ د صحیح مسلم په ټولو نسخو کې راغلي دي، خو مشهوره او مستنده خبره دا ده، چې له دې څخه (بني اسمعیل) مراد دي، ځکه چې حدیث پر همدې دلالت هم کوي او د حدیث د سیاق منشا هم له دې څخه ده، چې له دې څخه عرب مراد دي او له مدینة څخه قسطنطنیة مراد ده.

په دې لړ کې دا تاویل هم کېدای شي، چې د بنو اسمعیل لپاره د بنو اسحاق الفاظ ځکه راوړل شوي دي، چې اسحاق علیه السلام د بنو اسمعیل تره کېږي او د (عم الرجل صنو ابیه) مطابق تره ته یې نسبت صحیح دی.

که حدیث پر ظاهري معنا پرېښودل شي، نو له بنو اسحاق څخه هغه خلک مراد دي، چې په هغه زمانه کې ایمان راوړي او له مهدي سره یوځای شي، لکه څنګه چې له مخکینیو روایتونو څخه معلومېږي.

له روایت څخه داسې معلومېږي، چې کله د دجال د راوتلو خبر خپور شي، نو مهدي به د دې خبرې د تحقیق لپاره یوه ډله وټاکي. په یو حدیث کې راغلي دي:

---

۱- نووي علی هامش مسلم: ۲/ ۳۹۶.

فَيَبْعَثُوْنَ عَشَرَ فَوَارِسَ طَلِيْعَةً، قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنِّيْ لَأَعْرِفُ أَسْمَاءَهُمْ وَأَسْمَاءَ آبَائِهِمْ، وَأَلْوَانَ خُيُوْلِهِمْ، هُمْ خَيْرُ فَوَارِسَ عَلَى ظَهْرِ الْأَرْضِ يَوْمَئِذٍ - أَوْ (قَالَ) مِنْ خَيْرِ فَوَارِسَ عَلَى ظَهْرِ الْأَرْضِ يَوْمَئِذٍ.»[١]

ژباړه: مهدي به د لسو تنو يوه ډله د دې خبرې د تحقيق لپاره ولېږي. رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: «زه د دې ډلې د سپرو كسانو او د دوى د پلرونو نومونه او د دوى د اسونو رنگونه پېژنم؛ دوى به په دې وخت كې د ځمكې پر مخ تر ټولو غوره خلك وي».

له تحقيق وروسته به معلومه شي، چې خبر غلط و، خو كله چې مهدي له خپل لښكر سره شام ته ورسېږي، نو په دې وخت كې به دجال په حقيقت كې راوتلى وي، لكه په حديث كې چې راغلي دي: فَإِذَا جَاءُوا الشَّامَ خَرَجَ.[٢]

**يادونه:** د دې فتوحاتو په موده كې به مهدي كنيسة الذهب ته لاړ شي.

**د ايټاليې په كنيسة الذهب كې خوندي شوې خزانې:**

دلته هغه لوى خزانې خوندي ساتل شوي دي، چې د روم قيصر له بني اسرائيلو څخه د بيت المقدس له فتحې سره راوړې وې، چې د روم قيصر په يو سلو اويا زره (١٧٠،٠٠٠) گاډو كې راوړې وې.

---

١- مسلم: ٢/ ٣٩٢،. رقم: ٢٨٩٩.
٢- مسلم: ٢/ ٣٩٢، رقم: ٢٨٩٩.

مهدي به دغه خزانې په يو سلو اويا زره (۱۷۰،۰۰۰) كښتيو كې بېرته بيت المقدس ته راوړي او په دې ځاى كې به الله تعالى لومړني او اخري ټول خلک يو ځاى کړي. په دې لړ كې يو مفصل روايت د تفسير قرطبي په حواله ذكر كول مناسب معلومېږي:

قَالَ حُذَيْفَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ! لَقَدْ كَانَ بَيْتُ الْمَقْدِسِ عِنْدَ اللهِ عَظِيْمًا جَسِيْمَ الْخَطَرِ عَظِيْمَ الْقَدْرِ. فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:" هُوَ مِنْ أَجَلِّ الْبُيُوْتِ ابْتَنَاهُ اللهُ لِسُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ مِنْ ذَهَبٍ وَفِضَّةٍ وَدُرٍّ وَيَاقُوتٍ وَزُمُرُّدٍ": وَذَلِكَ أَنَّ سُلَيْمَانَ بْنَ دَاوُدَ لَمَّا بَنَاهُ سَخَّرَ اللهُ لَهُ الْجِنَّ، فَأَتَوْهُ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ مِنَ الْمَعَادِنِ، وَأَتَوْهُ بِالْجَوَاهِرِ وَالْيَاقُوتِ وَالزُّمُرُّدِ، وَسَخَّرَ اللهُ تَعَالَى لَهُ الْجِنَّ حَتَّى بَنَوْهُ مِنْ هَذِهِ الْأَصْنَافِ. قَالَ حُذَيْفَةُ: فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ! وَكَيْفَ أُخِذَتْ هَذِهِ الْأَشْيَاءُ مِنْ بَيْتِ الْمَقْدِسِ؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:" إِنَّ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ لَمَّا عَصَوُا اللهَ وَقَتَلُوا الْأَنْبِيَاءَ سَلَّطَ اللهُ عَلَيْهِمْ بَخْتِ نَصْر وَهُوَ مِنَ الْمَجُوْسِ وَكَانَ مُلْكُهُ سَبْعُمِائَةِ سَنَةٍ، وَهُوَ قَوْلُهُ:" فَإِذا جَاءَ وَعْدُ أُوْلَاهُما بَعَثْنا عَلَيْكُمْ عِباداً لَنا أُوْلِيْ بَأْسٍ شَدِيْدٍ فَجاسُوْا خِلالَ الدِّيارِ وكانَ وَعْداً مَفْعُولاً" فَدَخَلُوا بَيْتَ الْمَقْدِسِ وَقَتَلُوا الرِّجَالَ وَسَبَوُا النِّسَاءَ وَالْأَطْفَالَ وَأَخَذُوا الْأَمْوَالَ وَجَمِيْعَ مَا كَانَ فِي بَيْتِ

الْمَقْدِسِ مِنْ هَذِهِ الْأَصْنَافِ فَاحْتَمَلُوْهَا عَلَى سَبْعِيْنَ أَلْفًا وَمِائَةِ أَلْفِ عَجَلَةٍ حَتَّى أَوْدَعُوْهَا أَرْضَ بَابِلَ، فَأَقَامُوْا يَسْتَخْدِمُوْنَ بَنِي إِسْرَائِيْلَ وَيَسْتَمْلِكُوْنَهُمْ بِالْخِزْيِ وَالْعِقَابِ وَالنَّكَالِ مِائَةَ عَامٍ، ثُمَّ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ رَحِمَهُمْ فَأَوْحَى إِلَى مَلِكٍ مِنْ مُلُوْكِ فَارِسَ أَنْ يَسِيْرَ إِلَى الْمَجُوْسِ فِيْ أَرْضِ بَابِلَ، وَأَنْ يَسْتَنْقِذَ مَنْ فِيْ أَيْدِيْهِمْ مِنْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ، فَسَارَ إِلَيْهِمْ ذَلِكَ الْمَلِكُ حَتَّى دَخَلَ أَرْضَ بَابِلَ فَاسْتَنْقَذَ مَنْ بَقِيَ مِنْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ مِنْ أَيْدِي الْمَجُوْسِ وَاسْتَنْقَذَ ذَلِكَ الْحُلِيَّ الَّذِيْ كَانَ فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ وَرَدَّهُ اللهُ إِلَيْهِ كَمَا كَانَ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَقَالَ لَهُمْ: يَا بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ إِنْ عُدْتُمْ إِلَى الْمَعَاصِي عُدْنَا عَلَيْكُمْ بِالسَّبْيِ وَالْقَتْلِ، وَهُوَ قَوْلُهُ:" عَسَى رَبُّكُمْ أَنْ يَرْحَمَكُمْ وَإِنْ عُدْتُمْ عُدْنَا" فَلَمَّا رَجَعَتْ بَنُوْ إِسْرَائِيْلَ إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ عَادُوْا إِلَى الْمَعَاصِي فَسَلَّطَ اللهُ عَلَيْهِمْ مَلِكُ الرُّوْمِ قَيْصَرَ، وَهُوَ قَوْلُهُ:" فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ لِيَسُوْؤُا وُجُوْهَكُمْ وَلِيَدْخُلُوا الْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوْهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَلِيُتَبِّرُوا مَا عَلَوْا تَتْبِيْراً" فَغَزَاهُمْ عَسَى رَبُّكُمْ أَنْ يَرْحَمَكُمْ وَإِنْ عُدْتُمْ عُدْنَا وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِيْنَ حَصِيْراً . فِيْ كَنِيْسَةِ الذَّهَبِ، فَهُوَ فِيْهَا الْآنَ حَتَّى يَأْخُذَهُ الْمَهْدِيُّ فَيَرُدَّهُ إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ، وَهُوَ أَلْفُ سَفِيْنَةٍ

وَسَبْعُمِائَةِ سَفِيْنَةٍ يُرْسَى بِهَا عَلَى يَافَا حَتَّى تُنْقَلَ إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ وَبِهَا يَجْمَعُ اللهُ الْأَوَّلِيْنَ وَالْآخِرِيْنَ ...»(۱)

ژباړه: حذيفه رضي الله عنه وايي چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل: «له بيت المقدس سره خو نږدې د لوی شان والا جومات دی». رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: «هغه د نړۍ په ټولو كورونو كې غوره كور دی، چې الله تعالى د سليمان بن داود [عليهما السلام] په لاس له سرو او سپينو زرو، جواهراتو، ياقوتو(۲)، زمرُدو(۳) څخه جوړ كړی و او هغه داسې چې كله سليمان [عليه السلام] د دې ودانۍ پيل كړه، نو الله تعالى ورته پېريان تابع كړل، پېريانو هم دا ټول جواهرات، سره او سپين زر راټول كړل او جومات يې ترې جوړ كړ». حذيفه رضي الله عنه وايي: چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه په دې اړه پوښتنه وكړه، چې له بيت المقدس څخه دا ټول سره سپين زر او جواهرات څخه يوړل شو؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم راته وفرمايل: «كله چې بني اسرائيلو د الله تعالى نافرماني وكړه، په ګناهونو او بدعملونو مبتلا شول او پيغمبران يې ووژل، نو الله تعالى پرې بخت نصر مجوسي پاچا مسلط كړ، نوموړی پر بيت المقدس اووه سوه (۷۰۰) كاله پاچايي وكړه او د قران كريم د دې ايت ﴿فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ أُولَاهُمَا بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَّنَا أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ﴾ څخه همدا پېښه معلومېږي. د بخت نصر لښكر بيت المقدس ته ننوت، سړي يې ووژل، ښځې او ماشومان يې بنديان كړل، له بيت المقدس څخه يې ټول مالونه، سره زر، سپين زر او جواهرات په يو سلو اويا زره ګاډو كې يوړل

---

۱- تفسير قرطبي: ۱۰/۲۲۲، والتذكرة للقرطبي ۶۵۳.

۲- يو ډول سور رنګه قيمتي كاڼی دی. (ژباړن)

۳- يو ډول قيمتي معدني شين رنګه كاڼی دی، چې غمي ورڅخه جوړېږي. (ژباړن)

او په خپل هېواد بابل کې یې کېښودل، په دې توگه بني اسرائیل یې تر سلو کالو پورې خپل غلامان کړل او شاقه کارونه به یې په ډېر ذلت سره ترسره کول.
بیا الله تعالی د ایران له پاچایانو څخه یو پاچا د بخت نصر مقابلې ته ودراوه، چې په پای کې یې بابل فتح کړ او پاتې بني اسراییل یې د بخت نصر له منگولو ازاد کړل او څومره مالونه یې چې له بیت المقدس څخه وړي وو، هغه یې بېرته بیت المقدس ته ورسول. بیا یې نبي اسرائیلو ته حکم وکړ، که بېرته خپلې نافرمانۍ او گناهونو ته راوگرځېدئ، نو د قتل او زندان عذاب به درباندې بیا مسلط کړو. د ﴿عَسٰی رَبُّکُمۡ أَنۡ یَرۡحَمَکُمۡ وَإِنۡ عُدتُّمۡ عُدۡنَا﴾ ایت څخه همدا خبره معلومېږي.
بیا کله چې بني اسرائیل بېرته بیت المقدس ته راستانه شول (او ټول مالونه او سامانونه هم بېرته لاس ته ورغلل)، نو الله تعالی پرې د روم قیصر مسلط کړ، چې د ﴿فَإِذَا جَآءَ وَعۡدُ الۡآخِرَةِ لِیَسُوٓءُوا وُجُوهَکُمۡ﴾ ایت څخه همدا خبره مراد ده. د روم پاچا له دې خلکو سره د وچې او سمندري دواړو لارو څخه جگړه وکړه، چې ډېر کسان یې ترې ووژل او بندیان یې کړل او بیا یې د بیت المقدس ټول مالونه په یو سلو اویا زره کښتیو کې یوړل او په خپله کنیسة الذهب کې یې کېښودل، تر دې چې مهدي به دغه مالونه او خزانې بېرته په یو سلو اویا زره کښتیو کې بیت المقدس ته یوسي او دلته به الله تعالی ټول اولین او اخرین راجمع کړي)).

# درېيمه برخه

# له اسمان څخه د عیسیٰ علیه السلام

# راکوزېدل

# او

# د مهدي وفات

## درېيم فصل

## له اسمان څخه د عيسى عليه السلام راكوزېدل او د مهدي وفات مختصر حالات:

د قيامت له علامو څخه يوه هم له اسمان څخه د عيسى عليه السلام راكوزېدل دي. دا ډېر اوږد او مهم فصل دی، چې زياترو محدثينو په دې هكله مستقل كتابونه ليكلي دي. په دې اړه نورو علماوو او مستشرقينو هم ليكنې كړې دي.

دلته د عيسى عليه السلام د نازلېدو څو مختصر حالات ذكر كوو او دا به په ډاگه كړو، چې د عيسى عليه السلام په زمانه كې به مهدي كومې كارنامې ترسره كړې او د هغه مقام او مرتبه به څومره وي. دغه ټول مسايل به د معتمدو روايتونو او مستندو تاريخي اقوالو په رڼا كې وړاندې كړو.

**دجال به د شام او عراق په منځ كې راووځي:**

دجال به لومړى د شام او عراق په منځ كې راووځي، خو په دې وخت كې به د دجال راوتل په خلكو كې مشهور شوي نه وي، بيا به نومورى د اصفهان په يهوديه كلي كې راڅرگند شي، دې ځای ته له رارسېدو سره سم به نومورى ډېر مشهور شي او شاوخوا به فتنې خپرې كړي.

## د دجال د راوتلو روايتونه:

د دجال د راڅرگندېدو د وخت په اړه په احاديثو كې مختلف ځايونه ښودل شوي دي، چې د شام او عراق منځنۍ غونډۍ، خراسان، حوز او كرمان او اصفهان د يادونې وړ دي.

د صحيح مسلم په روايت كې د شام او عراق منځنۍ غونډۍ ښودل شوې:

عَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، مَرْفُوْعًا: إِنَّهُ (الدَّجَّالَ) خَارِجٌ خَلَّةً بَيْنَ الشَّأْمِ وَالْعِرَاقِ. [1]

ژباړه: له نواس بن سمعان رضي الله عنه څخه مرفوع روايت شوی دی: دجال به د شام او عراق په منځنۍ غونډۍ كې راووځي.

په الفتح الرباني كې له ابوبكر صديق رضي الله عنه څخه په روايت شوي حديث كې د خراسان يادونه شوې ده:

عن ابي بكر رضي الله عنه قال: حدثنا رسول الله صلى الله عليه وسلم: ان الدجال يخرج من ارض بالمشرق يقال لها خراسان. [2]

ژباړه: ((له ابوبكر رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: دجال به په ختيځ كې له خراسان څخه راووځي)).

په الفتح الرباني كې بل حديث له انس بن مالک رضي الله عنه څخه نقل شوی دی، چې په هغې كې د اصفهان يادونه شوې ده:

---

۱- مسلم: ۲/ ۴۰۱، رقم: ۲۹۳۷.

۲- الفتح الرباني: ۲۴/ ۷۲، اسناده صحيح.

عن انس بن مالك رضي الله عنه، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: يخرج الدجال من يهودية اصبهان.[۱]

ژباړه: له انس بن مالک رضي الله عنه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل:

«دجال به د اصفهان له يهوديه[۲] سيمې څخه راووځي».

په الفتح الرباني کې له ابو هريره رضي الله عنه څخه د حوز او کرمان يادونه شوې ده:

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُوْلُ: لَيَنْزَلَنَّ الدَّجَّالُ حوزَ وكِرْمَان.[۳]

ژباړه: له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی، وايي چې ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه اورېدلي دي، چې ويل يې:

«دجال به په حوز او کرمان کې راکوز شي».

پورته روايتونه ټول صحيح دي، خو په څلورم روايت کې د «ابن اسحاق» راوي د مدلس کېدو له امله حديث د ضعف درجې ته رسېدلی دی.

---

۱- الفتح الرباني: ۲۴/ ۷۳.

۲- اصفهان د ايران مشهور ښار دی . علامه ياقوت حموي په معجم البلدان نومي کتاب (حرف الهمزه، باب الهمزه والصاد: ۱ | ۲۰۸، چاپ چارې: دارالفکر – بيروت) کې ليکلي دي چې کله د بخت نصر پاچا په زمانه کې يهودان له بيت المقدس څخه وشړل شو ، نو د دوی يوه ډله اصفهان ته وکوچېده او هلته استوګن شول، کورونه يې جوړ کړل ، نسل يې په کې وده وکړه چې په پای کې دغه سيمه د يهوديه په نوم مشهوره شوه. (ژباړن)

۳- الفتح الرباني: ۲۴/ ۷۳.

د روایتونو تطبیق او په دې وخت کې د مسلمانانو پناه ځایونه.

دغه اختلاف داسې دفع کېږي، چې دجال به په لومړي ځل د شام او عراق په منځنۍ غونډۍ کې راووځي، خو په دې وخت کې به دومره مشهور شوی نه وي. دا چې د دجال ملګري یهودان هغه ته د یهودیه په کلي کې په تمه دي، نو هغه به د خراسان د اصفهان په یهودیه کې له خپلو ملګرو سره په نړۍ کې وګرځي. په همدې مقصد به دجال په حوز او کرمان کې پړاو واچوي، دا چې په حدیث کې د لَيَنْزِلَنَّ الدَّجَّالُ حوزَ وَكِرْمَانَ الفاظ راغلي دي، نو له دې څخه داسې معلومېږي، چې دا ځای به د هغه د تم کېدو وي او له دې وروسته به یې د شر اور ټولې نړۍ ته ورسېږي.

دجال به د نړۍ طوفاني دوره وکړي، یوازې څلوېښت ورځې به په دنیا کې وي، یوه ورځ به یې د یو کال برابره، دویمه ورځ به یې د یوې میاشتې په اندازه او درېیمه ورځ به یې د یوې اونۍ په اندازه وي، پاتې ورځې به یې د عامو ورځو په شان وي.[1]

---

۱- مخکې دا خبره مشهوره وه چې د ځمکې دوران په خپل محور هره پېړۍ نږدې (۱ . ٤) ملي ثانیې ستېږي . د دې دوران له مخې شپه او ورځ راځي ، خو د نویو څېړنو له مخې ساینس پوهانو جوته کړې چې په رفتار کې دا کمښت د ځینو وختونو له تېزوالي او سرعت څخه رامنځته کېږي او دا درې اصلي لاملونه لري:

(۱)- د بېلابېلو سیارو د ثقل کشش په دې رفتار او تګ کې د کمي راوستلو لامل ګرځي ، څکه چې هغه ځمکه خپل خان ته راکاږي

(۲)- د دوران یا ګردش د رفتار په ستوالي کې هوا او بادونه هم خپل رول لوبوي . حقیقت دا دی چې په فوري ګردش کې د سبتۍ راوستلو (۹۰%) سلنه عمل د هوا د بدلون له امله رامنځته کېږي، که د هوا رفتار تېزېږي ، نو بل خوا د ځمکې د کوې رفتار او مزل ستېږي.

## د دجال زياتره پلويان به يهودان وي:

كله چې مهدي دمشق ته ورسېږي، نو په ډېره بيړه به د جنګ تياری ونيسي. مهدي او پلويان به يې په دمشق كې وي او د جنګ لپاره به چمتووالی نيسي، دوی به په اموي مسجد كې لمونځ ادا كوي.

په دې سخته زمانه كې به مسلمانان په اردن او بيت المقدس كې راټول شوي وي. مسلمانان به لومړی د اردن په (افيق) نومي دره كې راټول شي، لكه په مصنف ابن ابي شيبه كې چې راغلي: فينحاز (المسلمون) الى عقبة أُفَيق.[1]

---

(۳) درېيم لامل او مهم سبب يې (Haarp) نومي اداره ده ، چې دغه د يهودي ساينس پوهانو تر څارنې لاندې اداره د موسمونو يا فصلونو په انداز كې د بدلون، د ځمكې په محوري ګردش كې د سستې راوستلو او همدارنګه دځمكې په كره كې دزلزلو د زياتوالي مسوليت هم په غاړه لري.
(Haarp) يوه پروژه ده چې د دې ادارې ساينس پوهانود (۱۹۸۷- ۱۹۹۲) كلونو ترمنځ يوه داسې وسله تياره كړه چې د ځمكې ايوني يا مقناطيسي كرې هره برخه بدلولی شي. دغه وسله نامتويهودي ساينس پوه (برنارډ جي ايسټ لنډ) په (۱۹۸۷) ز كال د اګست په يوولسمه نېټه ايجاد كړې وه .
په دې ترتيب په نړۍ كې د دجال د پاتې كېدو موده به د يو كال ، دوه مياشتو او څوارلسو ورځو په اندازه وي . ځينو محدثينو فرمايلي چې دا ورځې به په حقيقت كې اوږدې نه وي ، د غم او خپګان له امله به پر خلكو اوږدې شي، خو علامه نووي رحمه الله د مسلم په شرحه كې وايي: (( د زياتره محدثينو په نظر له حديث څخه ظاهري مانا مراد ده ، يعنې دا ورځې به په حقيقت كې هومره اوږدې وي، څومره چې يې په احاديثو كې يادونه شوې ده. په دې اړه د رسول الله صلی الله عليه وسلم دا فرمان ښكاره دليل دی چې پاتې ورځې به د عامو ورځو په څېر وي)).له دې معلومه شوه چې لومړی درې ورځې به له عامو ورځو سره توپير لري. (ژباړن)
۱- مصنف ابن ابي شيبة: ۱۵/ ۱۳۷.

په ځينو روايتونو كې تر دې پورې خبره رارسېدلې، چې په دې وخت كې څوك پر الله تعالى او د قيامت په ورځ ايمان لري، هغوى به تقريبا د اردن په همدې دره كې وي:

و كل واحد يؤمن بالله واليوم الاخر ببطن الاردن.[1]

ژباړه: مسلمانان به په پاى كې د بيت المقدس په (جبل الدخان) غره كې راټول شي.

بل خوا دجال به په ټوله نړۍ كې فساد خپور كړى وي، په همدې لړ كې به تر دمشق پورې راورسېږي او د همدې غره په لمن كې به پړاو واچوي، له دې وروسته به د مسلمانانو پر ټولې محاصره كړي

د همدې محاصرې له كبله به مسلمانان له ډېرو ستونزو او لوږې سره مخ شي، تر دې چې ځينې كسان به د خپلې ليندۍ د تړلو پړي[2] وسېځي او بيا به يې وخوري. كله چې دا محاصره اوږده شي، نو د مسلمانانو مشر (مهدي) به ووايي: ولې له دې سركش سره له جنګ څخه وروسته او مخكې كېږو؟ لنډه دا چې هغه به خپل جنګيالي د فتحې يا شهادت په شرط اماده كړي. كله چې خلك د سهار لمونځ ادا كړي، نو له هغې وروسته به د دې جګړې لپاره پخه اراده وكړي.

په دې شپه به ډېره تياره وي او خلك به د جنګ په چمتووالي بوخت وي. مسلمانان به د دې شپې په سهار په توره تياره كې لمونځ ادا كړي. مهدي به د لمانځه لپاره مخكې شوى وي او اقامت به هم شوى وي، چې په دې كې به يو غږ وشي: ((ستاسو فرياد اورېدونكى

---

۱- كنز العمال: ۱۴ / ۳۱۵، رقم: ۳۸۷۹۱، ومستدرك للحاكم: ۴ / ۵۳۷، رقم: ۸۵۰۷.

۲- د حيواناتو په ورو كولمو باندې چې ليندۍ تړل كېږي. (ژباړن)

راورسېده». کله چې خلک يو خوا بل خوا وګوري، نو پر عيسیٰ عليه السلام به يې سترګې ولګي، هغه به دوه ژېړ څادرونه اغوستي وي، د دوو ملايکو پر اوږو به يې لاس ايښی وي او د مشق د جامع جومات په مناره به راکوز شي. په دې وخت کې به عيسیٰ عليه السلام زينه وغواړي او له منارې څخه به پرې راکوز شي:

فبينما هو كذلك اذ بعث الله المسيح ابن مريم، فنزل عند المنارة البيضاء شرقي دمشق بين مهر ودتين واضعا كفيه على اجنحة ملكين. [1]

ژباړه: مسلمانان به په همدې حالت کې وي، چې عيسیٰ عليه السلام به د ختيځ دمشق په سپينه مناره راکوز شي، چې د دوه ملايکو پر وزرونو (اوږو) به يې لاس ايښی وي.

**عيسیٰ عليه السلام به پر کومه مناره راکوز شي؟**

دا چې عيسیٰ عليه السلام به په کومه مناره راکوز شي، نو په دې اړه دوه خبرې دي: له ځينو روايتونو داسې ښکاري، چې هغه به د اموي مسجد په مناره راکوز شي، خو که نورو روايتونو ته وګورو، نو قوي خبره دا ده، چې دا له اموي مسجد پرته کومه بله مناره ده. داسې هم ويل کېږي، چې د دمشق په (غوطه) مقام کې به راکوز شي، چې له پخوا پېړو څخه جوړه شوې ده او تر ننه پورې شته. بله دا چې د هغې ځای خلک هم دا خبره کوي، چې عيسیٰ عليه السلام به په دې ځای کې راکوز شي. والله اعلم. د تفصيل لپاره د مفتي محمد رفيع

---

۱- التذكرة: ۷۰۲.

عثماني چاپ شوی یونلیک (سفرنامه) چې (د پیغمبرانو په ځمکه کې څو ورځې) نومېږي، مطالعه کړئ.

**عیسیٰ علیه السلام به د نېکانو بنده ګانو په قوم کې راکوز شي:**

عیسی علیه السلام چې په کوم قوم کې راکوزېږي، هغه به نېکان بنده ګان وي (په یو روایت کې یې شمېر اته سوه نارینه او څلور سوه ښځې ښودل شوی دی):

عن ابي هريرة رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: ينزل عيسىٰ ابن مريم على ثمان مائة رجل واربع مائة امراة خيار من على الارض يومئذ وكصلحاء من مضىٰ. [۱]

ژباړه: له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ((عیسیٰ علیه السلام به د اته سوو نارینه او څلور سوه داسې ښځو په منځ کې راکوز شي، چې په دې ورځ به د ځمکې پر مخ تر ټولو غوره خلک وي او د مخکینۍ زمانې له نېکانو سره به په رتبه کې یو شان وي)).

مهدي به عیسیٰ علیه السلام د امامتۍ لپاره راوبلي، جاینماز به ورته پرېږدي او خپله به شاته شي، په دې وخت کې به عیسیٰ علیه السلام د مهدي پر ملا لاس کېږدي او ورته به وفرمايي: ((همدا ته امامتي وکړه، ځکه چې اقامت ستا لپاره شوی دی)). لنډه دا چې عیسیٰ علیه السلام به له امامتۍ انکار وکړي او وبه وايي: ((دا د دې امت عزت دی، چې ځینې خلک د ځینو نورو امیران دي)).

---

۱- كتاب التذكرة: ۷۶۲، كنز العمال رقم: ۳۸۸۶۳.

عن ابي امامة رضي الله عنه مرفوعا . . . فرجع ذلك الامام ينكص يمشي القهقرىٰ ليتقدم عيسىٰ يصلى بالناس، فيضع عيسىٰ يده بين كتفيه، ثم يقول له: تقدم فصل فانها لك إقيمت.[۱]

ژباړه په دې وخت كې به مهدي امامتي وكړي او عيسىٰ عليه السلام به د دې امت په يو مشر پسې لمونځ ادا كړي.

په دې ځاى كې يوه بله خبره په ياد ساتئ، چې له ابوهريره رضي الله عنه څخه په يوحديث كې دعيسىٰ عليه السلام امامتي رانقل شوې.

عن ابي هريرة رضي الله عنه، قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: ينزل عيسىٰ ابن مريم فيؤمهم.[۲]

ژباړه له ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى هغه وايي، چې له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه مې اوريدلي دي، چې فرمايل يې: چې عيسى عليه السلام به راكوز شي خلكو ته به امامت وكړي.

په دې توگه يو بل روايت هم شته: فينزل عيسىٰ ابن مريم فامهم.[۳]

ژباړه: عيسىٰ عليه السلام به خلكو ته امامتي وكړي.

په هر صورت، كله چې د سهار لمونځ وشي، نو له هغې وروسته به بحث او مشورې وكړي او بيا به د دجال او د هغه له پلويانو سره د جنگ لړۍ پيل شي.

---

۱- ابن ماجه: ۴۰۷۷.

۲- سعاية: ۲/ ۱۸۴، عن ابن حبان.

۳- مسلم: ۲/ ۳۹۲، رقم: ۲۸۹۷.

**عیسیٰ علیه السلام ته د کتو په وخت کې د دجال حالات:**

کله چې دجال عیسیٰ علیه السلام ووینې، نو حیران به شي او وېره تښتي، تقریبا له ده سره به اویا زوره (۷۰،۰۰۰) تنه یهودان ملګري وي. دجال به له دمشق څخه ووځي او د اسرائیلو په طرف به وتښتي، نوموړی به د افیق له غونډۍ تېر شي او د (لُد) ښار ته به ورسېږي، خو دوی پسې به د عیسیٰ علیه السلام او مهدي لښکرې ورپسې وي. دجال به لد ښار ته ننوځي، چې په دې وخت کې به عیسیٰ علیه السلام راورسېږي. د دجال حالت به داسې وي، چې که عیسیٰ علیه السلام هېڅ هم ونه کړي، نو هغه به بیا هم د مالګې په شان ویلي شي، خو عیسی علیه السلام به یې په خپله وسله ووژني او له ده سره به د ده ملګري یهودان هم ووژني.

**په ټوله نړۍ کې به اسلام خپور شي:**

عیسیٰ علیه السلام او مهدي به له دجال وروسته د نړۍ د پاتې سیمو فتحې ته خپل پام واړوي او په ټوله نړۍ کې به اسلام خپور کړي، چې په دې توګه به له یوې خوا الله تعالی اسلام په ټوله نړۍ غالب کړي.او له بلې خوا به د رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه وړاندوینه پوره شي، چې په یو حدیث کې یې ورته اشاره کړې ده:

عن المقداد رضي الله عنه انه سمع رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول: لا یبقی علی ظهر الارض بیت مدر ولا وبر الا ادخله الله

كلمة الاسلام بعز عزيز وذل ذليل، اما يعزهم الله فيجعلهم من اهله او يذلهم فيدينون لها، قلت: فيكون الدين كله لله.[1]

ژباړه: له مقداد رضي الله عنه څخه روايت دی، وايي چې ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه اورېدلي دي: ((د ځمكې پر مخ به داسې خام يا پوخ كور پاتې نه شي، چې الله تعالی ورته د اسلام كلمه ونه رسوي، چا ته به عزت وركړي او څوك به ذليله كړي. الله تعالی چې چا ته عزت وركوي، نو هغه ته به د مسلمانېدو توفيق هم وركړي او څوك چې ذليله كوي، دوی به هم په اخره كې دين غوره كړي)). ما ورته وويل: ((نو په هغه وخت كې به ټول دين د الله تعالی شي)).

لنډه دا چې مهدي به له راڅرګند ېدو وروسته تر اوو كالو پورې له عيسويانو سره جنګېږي او په اتم كال به له دجال سره مقابلې ته وروداننګي، نهم كال به له عيسیٰ عليه السلام سره تېر كړي. په دې توګه به په ټوله نړۍ كې د ايمان پسرلی راشي، هر څه به ډېر شي. كله چې دجال ووژل شي، نو مهدي به د عيسیٰ عليه السلام په ملګرتيا د بېلابېلو سيمو سياحت وكړي او چا ته چې د دجال له امله مشكلات رسېدلي دي، هغوی ته به د اجر زېري او تسلي وركړي او د سخاوت په وسيله به د هغوی زړونه ډاډمن كړي.

### د مهدي عمر او وفات:

د مهدي د عمر په اړه غوره خبره دا ده، چې نوموړی به په جنګ كې شهيد نه شي، بلكې د راڅرګندېدو په نهم كال (او د يو قول له

---

١- رواه احمد: ٣٩/ ٢٣٦، رقم: ٢٣٨١٤.

مخې د نهه څلوېښتو كالو په عمر وفات شي، خو دا چې نوموړی به په كوم ښار كې وفات شي او چېرته به خاورو ته وسپارل شي، په دې اړه څه يادونه نه ده شوې. يوازې په سنن ابي داود كې دومره راغلي، چې: ثم يتوفى ويصلى عليه المسلمون.[1]

ژباړه: بيا به نوموړی وفات شي او مسلمانان به پرې جنازه وكړي.

علامه شاه انورشاه كشميري رحمه الله وايي:

ويبعث المهدي لاصلاح المسلمين، فبعد نزول عيسىٰ عليه السلام يرتحل المهدي من الدنيا الى العقبىٰ.[2]

ژباړه: مهدي رضي الله عنه به د مسلمانانو د اصلاح او سمون په خاطر مبعوث شي او د عيسىٰ عليه السلام له نازلېدو وروسته به له نړۍ رحلت وكړي.

ظاهرا داسې ښكاري چې د جنازې لمونځ به يې عيسىٰ عليه السلام ادا كړي.

دا خو منلې خبره ده، چې مهدي به له راڅرګندېدو نهه كاله وروسته وفات شي، په داسې حال كې چې د راڅرګندېدو په وخت كې به يې څلوېښت كاله عمر وي، دا خبره په مختلفو كتابونو كې ليكل شوې ده، خو موږ ته په دې اړه كوم صحيح روايت په لاس رانغی، بيا هم په ځينو ضعيفو روايتونو كې يې تعين شوی دی.

---

۱- سنن ابو داود: ۲/ ۵۸۹، رقم: ۴۲۸۶.

۲- العرف الشذي على هامش الترمذي: ۲/ ۴۷ حسب نسخة الهندية.

عن ابي امامة رضي الله عنه مرفوعا. . . فقال له رجل: يا رسول الله! من امام الناس يومئذ؟ قال: المهدي من ولدي ابن ا ربعين سنة الخ. [١]

ژباړه: له ابي امامه رضي الله عنه څخه مرفوع روايت شوي: «يو سړي له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه (د اخرې زمانې په اړه) پوښتنه وكړه، چې په هغه وخت كې به د خلكو امام څوک وي؟» رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: «زما له اولادې څخه به د مهدي په نوم يو شخص وي، چې (په هغه وخت كې به) څلوېښت كلن وي».

## د عيسىٰ عليه السلام ژوند ته ځغلنده كتنه

كله چې مهدي له نړۍ رخصت شي، نو د اسلامي دولت تولې چارې به عيسىٰ عليه السلام پرمخ وړي. عيسىٰ عليه السلام به په دنيا كې څلوېښت كاله ژوند وكړي، چې واده به هم وكړي او اولاد به يې هم پيدا شي. د ده په زمانه كې به د ياجوج ما جوج پېښه هم رامنځ ته شي. په پاى كې به د (مُقعَد) په نوم يو شخص خپل ځايناستى وټاكي او خپله به له نړۍ رحلت وكړي. بيا به د رسول الله صلى الله عليه وسلم روضې مباركې ته نږدې خاورو ته وسپارل شي او له دې وروسته به د قيامت آخرې علامې راښكاره شي.

---

١- الحاوي: ٢/ ٦٦.

قال كعب الاحبار: ان عيسىٰ عليه السلام يمكث في الارض اربعين سنة، وقال: وان عيسىٰ عليه السلام يتزوج بامراة من ال فلان، ويرزق منها ولدين فيسمىٰ احدهما محمدا والاخر موسىٰ، ويكون الناس معه على خير وفي خير زمان، و ذلك اربعين سنة، ثم يقبض الله روح عيسىٰ و يذوق الموت و يدفن الى جانب النبي صلى الله عليه وسلم في الحجرة، ويموت خيار الامة ويبقىٰ شرارها في قلة من المؤمنين. [۱]

ژباړه: كعب بن احبار رضي الله عنه وايي: «عيسىٰ عليه السلام به په دنيا كې څلوېښت كاله وي، هغه به د يوې قبيلې له ښځې سره نكاح وكړي، چې له هغې څخه به يې دوه زامن پيدا شي، چې يو به محمد او بل به موسىٰ نومېږي. له ده سره به خلك ښايسته ژوند تېروي. دا ژوند به څلوېښت كاله وي، بيا به الله تعالى د هغه روح قبض كړي، په دې توګه به عيسىٰ عليه السلام ته هم مرګ راشي او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د حجرې تر څنګ به ښخ شي؟ د امت نېكان بنده ګان به هم له دې نړۍ سترګې پټې كړي او بد عمله خلك به پاتې شي.

په دې لړ كې د تورات يو ايت له عبدالله بن سلام رضي الله عنه څخه نقل شوى دى:

---

۱- التذكرة للقرطبي:: ۷۶۳.

عن يوسف بن عبدالله بن سلام رضي الله عنه عن ابيه قال: نجد في التوراة ان عيسىٰ ابن مريم يدفن مع محمد صلى الله عليه وسلم.[۱]

ژباړه: عبدالله بن سلام رضي الله عنه له خپل پلار څخه روايت كوي، چې موږ په تورات كې وليده، چې عيسىٰ بن مريم (عليهما السلام) به د رسول الله صلى الله عليه وسلم تر څنګ ښخ شي.

په پاى كې به الله تعالى چې كله قيامت راولي، نو مخكې به ترې يوه ښايسته باد راولي، چې له دې سره به د ټولو مومنانو روحونه قبض شي او د نړۍ پر مخ به د هېڅ مومن نښه هم پاتې نه شي. له دې وروسته به په بدترينو خلكو قيامت قايم شي.

**د مهدي مهمې كارنامې:**

۱. ځمكه به داسې له عدل او انصاف څخه ډكه كړي، څنګه چې له ظلم څخه ډكه وه، ګويا د هغه په دولت كې به ظلم نه وي.
۲. د هغه انصاف او عدل به عام وي، نه خاص.
۳. د خلفاء راشدينو په شان خلافت به كوي.
۴. د هغه په زمانه او دولت كې به ټولې نړۍ ته اسلام ورسېږي.
۵. د امت د زړونو تزكيه به وكړي.
۶. تعليم به عام كړي.
۷. خلک به له شرک او بدعت څخه پاک کړي.
۸. د مهدي د راڅرګندېدو په اووم كال به دجال راووځي او د عيسىٰ عليه السلام په ملتيا به له هغه سره جګړه كوي.

---

۱- الفتن: ۳۹۵، رقم: ۱۲۲۸.

۹. د هغه په زمانه کې به غله دانه ډېره زياته وي.
۱۰. د هغه په زمانه کې به څاروي هم ډېر وي.
۱۱. د هغه په زمانه کې به ځمکه ډېر حاصل ورکوي.

عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: يخرج في اخر امتي المهدي، يسقيه الله الغيث، و تخرج الارض نباتها، و يعطى المال صحاحا، و تكثر الماشية، وتعظم الامة، ويعيش سبعا او ثمانيا يعنى حججا. [۱]

ژباړه: ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ((زما د امت په اخر کې به مهدي راشي، الله تعالى به هغه ته باران ورکړي، ځمکه به نباتات راشنه کړي، مالونه به برابر وېشي، څاروي به ډېر شي او (په دې وخت کې به) امت د عزت په مقام کې وي، هغه به اووه يا اته کاله وي)).

۱۲. خوشحالي به دې حد ته ورسېږي، چې ارمان! کوم خلک چې په تنگسيا کې وفات شوي دي، هغوی هم راژوندي شي او دا ژوند ووينې.

۱۳. د خلکو زړونه به د خپل سخاوت څخه داسې ډک کړي، چې د هغوی به د زړونو غنا په برخه شي.

۱۴. په خلکو به بې حسابه مالونه وېشي.

۱۵. د کعبې د دروازې مخې ته به يوه خزانه راوباسي، چې تاج الکعبة نومېږي او هغه به په مسلمانانو تقسيم کړي.

---

۱- مستدرك للحاکم: ۶۰۱/۴، رقم: ۸۶۷۳.

## تاج الكعبة څه شی دی؟

د تاج الكعبة په اړه په کنز العمال کې یو روایت نقل شوی دی، د دې روایت په اړه مفتي نظام الدين شامزی رحمه الله ووايي:
((هغه صحيح دی)). [۱]

عَنْ طَاوُسٍ، قَالَ: وَدَّعَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ الْبَيْتَ ثُمَّ قَالَ: وَاللهِ مَا أُرَانِي أَدَعُ خَزَائِنَ الْبَيْتِ وَمَا فِيهِ مِنَ السِّلَاحِ وَالْمَالِ، أَمْ أَقْسِمُهُ فِي سَبِيلِ اللهِ؟ فَقَالَ لَهُ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: «امْضِ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ فَلَسْتَ بِصَاحِبِهِ، إِنَّمَا صَاحِبُهُ مِنَّا شَابٌّ مِنْ قُرَيْشٍ يَقْسِمُهُ فِي سَبِيلِ اللهِ فِي آخِرِ الزَّمَانِ» [۲]

ژباړه: له طاوس رحمه الله څخه روایت دی، چې عمر بن خطاب رضي الله عنه له بيت المال سره مخه ښه وکړه او بيا يې وويل: ((په الله تعالی قسم! زه نه پوهېږم، چې د بيت الله خزانه، وسلې او مالونه همداسې پرېږدم او که د الله تعالی په لاره کې يې ووېشم؟)). په دې کې ورته علي رضي الله عنه وفرمايل: ((ای امير المؤمنينه! تاسو د دې مسول نه یاستئ، د دې مسول خو يو قريشي زلمی دی، چې هغه به يې په اخره زمانه کې د الله تعالی په لاره کې تقسيم کړي)).

۱۶. مهدي رضي الله عنه به پرته له حساب څخه په لپو لپو مالونه ورکوي.

۱۷. دې امت ته به الله تعالی لوی عزت ورکړي.

---

۱- عقيده ظهور مهدي: ۷۰.

۲- الفتن لنعيم بن حماد: ۲۸۴، رقم: ۱۰۶۲.

**١٨. د مهدي د زمانې خوشحالي او د هغه د سخاوت يوه بېلګه په لاندې روايت كې ذكر شوې ده:**

عن ابي هريرة رضي الله عنه، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ابشروا بالمهدي رجل من قريش من عترتي، يخرج في اختلاف من الناس وزلزال فيملا الارض قسطا وعدلا كما ملئت ظلما و جورا و يرضى ساكن السماء وساكن الارض ويقسم المال صحاحا بالسوية و يملا قلوب امة محمد غنى ويسعهم عدله حتى انه يامر مناديا ينادي من له حاجة الي، فما ياتيه احد الا رجل واحد، ياتيه فيسئله فيقول: ائت السادن حتى يعطيك، فياتيه فيقول: انا رسول المهدي اليك لقطيني مالا فيقول: احث فيحثى ولا يستطيع ان يحمله، فيلقىٰ حتى يكون قدر ما يستطيع ان يحمله، فيخرج به فيندم، فيقول: انا كنت اجشع امة محمد نفسا، كلهم دعي الى هذا المال فتركه غيري، فيرد عليه، فيقول: انا لا نقبل شيئا اعطيناه، فيلبث في ذلك ستا او سبعا او ثمانيا او تسع سنين، ولا خير في الحيوة بعده

**ژباړه: له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى، هغه وايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ((د مهدي (په زېري) خوشحاله شئ، چې هغه به زما له كورنۍ څخه وي، نوموړى به په داسې وخت كې راڅرګند شي، چې د خلكو تر منځ به اختلافات**

راولاړ وي او زلزلې به هم كېږي، هغه به ځمكه له عدل او انصاف څخه داسې ډكه كړي، څنګه چې له ظلم څخه ډكه وه. د اسمان او ځمكې هر اوسېدونكى به له هغه څخه خوشحاله وي، هغه به مالونه په انصاف سره وېشي، د محمدي امت زړونه به غني كړي او عدل به يې ټولو خلكو ته ورسېږي، تر دې هغه به خپل يو غږ كوونكي ته ووايي چې ته داسې غږ وكړه، كه څوک له ما سره كار لري، نو هغه دې راشي. هغه ته به يوازې يو سړى راشي او څه به ترې وغواړي. مهدي به ورته وايي: (خزاندار ته ورشه ، هغه به درته څه مال دركړي). هغه به خزاندار ته ورشي او ورته به ووايي: (زه مهدي د دې لپاره رالېږلى يم، چې څه مال راكړې). خزاندار به ورته ووايي: (خپله له خزانې څخه مال راوباسه). هغه شخص به دومره مال راوباسي، چې پورته كولى به يې نه شي، بيا به يې كموي، تر دې چې پورته كولى به يې شي. كله چې هغه مال يوسي، نو په دې كار به پښېمانه شي او له ځان سره به ووايي: (زه د محمدي امت تر ټولو حريص انسان يم، ټول امت د مال غوښتلو ته راوبلل شو، خو له ما پرته ټولو خلكو مالونه پرېښودل). دغه سړى به غواړي چې مال بېرته وسپاري، خو خزاندار به ورته وايي: (موږ وركړى شى بېرته نه اخلو). بيا به مهدي شپږ، اووه، اته يا نهم كاله ژوندى وي او له دې مودې وروسته به د خلكو لپاره په ژوند كې خير نه وي)).

## ځينې مهمې پېښې

په احاديثو كې ځينو مهمو پېښو ته هم اشاره شوې ده، چې دا به قيامت ته نږدې په اخره زمانه كې راڅرګندېږي، خو دا تشريح په كې نه ده وركړل شوې، چې دا پېښې به كله راڅرګندې شي!؟ بيا هم محدثينو پېښو ته په كتو ځينې اندازې راويستلې دي. د مهدي په اړه چې له سلفو كوم اقوال رانقل شوي، د هغې له مطالعې داسې معلومېږي، چې دا ټولې پېښې به مهدي ته په نږدې وخت كې رابرسېره شي. اوس پېښو ته په لنډ ډول اشاره كوو:

**۱- پر عراق، مصر او شام د عجميانو له لوري بنديزونه:**

عَنْ أَبِيْ نَضْرَةَ، قَالَ: كُنَّا عِنْدَ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ فَقَالَ: يُوْشِكُ أَهْلُ الْعِرَاقِ أَنْ لَا يُجْبَى إِلَيْهِمْ قَفِيْزٌ وَلَا دِرْهَمٌ، قُلْنَا: مِنْ أَيْنَ ذَاكَ؟ قَالَ: مِنْ قِبَلِ الْعَجَمِ، يَمْنَعُوْنَ ذَاكَ، ثُمَّ قَالَ: يُوْشِكُ أَهْلُ الشَّامِ أَنْ لَا يُجْبَى إِلَيْهِمْ دِينَارٌ وَلَا مُدْيٌ، قُلْنَا: مِنْ أَيْنَ ذَاكَ؟ قَالَ: مِنْ قِبَلِ الرُّوْمِ، ثُمَّ سَكَتَ هُنَيَّةً، ثُمَّ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَكُوْنُ فِيْ آخِرِ أُمَّتِيْ خَلِيْفَةٌ يَحْثِي الْمَالَ حَثْيًا، لَا يَعُدُّهُ عَدَدًا» قَالَ قُلْتُ لِأَبِيْ نَضْرَةَ وَأَبِي الْعَلَاءِ: أَتَرَيَانِ أَنَّهُ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ فَقَالَا: لَا. [1]

---

۱- مسلم: ۳۹۵/۲، رقم: ۲۹۱۳.

ژباړه: له ابو نضره رحمه الله نه روايت دی هغه وايي: ((موږ له جابر [رضي الله عنه] سره ناست وو، چې ويې ويل: (ډېر ژر به د عراقيانو حالت دې ته ورسېږي، چې د يوې پيمانې په اندازه غله دانه او درهم به هم ورته رانه شي). موږ وويل: (دا بنديزونه به له كومه ځای ولګي؟) راته يې ويل: (د عجميانو له طرف). څو شېبې وروسته يې ويل: (ډېر ژر به د شاميانو حالت دې ته ورسېږي، چې له هغوی ته به يو دينار او يو مد هم ونه رسېږي). موږ پوښتنه وكړه: (دا بنديزونه به د چا له خوا ولګي؟). راته يې ويل: (د روميانو له خوا). بيا څو شېبې وروسته يې وويل: (رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: (زما د امت په اخري زمانه كې به يو خليفه راشي، چې خلكو ته به لپو لپو مالونه وركوي او شمېري به يې نه) ). راوي وايي: (ما له ابو نضره او ابوالعلاء څخه په دې اړه پوښتنه وكړه، چې دا خو به ستاسو په نزد عمر بن عبدالعزيز نه وي؟). هغوی راته وويل: نه! ))

**۲ - پر شام د عيسويانو بريد:**

له ځينو كتابونو داسې معلومېږي، چې پر شام به د عيسويانو حكومت وي او دا به تر خيبره پورې وي.

### ۳- په دې زمانه کې د عربو کموالی:

په دې زمانه کې به عرب ډېر لږ وي او هغوی به بيت المقدس ته نږدې راټول شي:

يَا رَسُوْلَ اللهِ! فَأَيْنَ الْعَرَب يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: هُمْ يَوْمَئِذٍ قَلِيْلٌ بِبَيْتِ الْمَقْدَسِ.[۱]

ژباړه: «ای د الله رسوله! په دې ورځ به عربان چېرته وي؟» رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: «هغوی به ډېر لږ وي او د بيت المقدس سره به راټول شي».

### ۴- خلک به مدينه پرېږدي:

خلک به مدينه له دې امله پرېږدي، چې په فلانکي ځای کې ډېر ښايسته باغونه دي، زراعت ښه دی، ارزاني ده، په داسې حال کې چې مدينه به د دوی لپاره غوره وي، خو څوک چې مدينه پرېږدي، نو الله تعالی به د هغوی پر ځای ډېر ښه خلک هلته استوګن کړي:

عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَرْفُوْعًا: «لَا يَخْرُجُ رَجُلٌ مِنَ الْمَدِيْنَةِ رَغْبَةً عَنْهَا إِلَّا أَبْدَلَهَا اللهُ خَيْرًا مِنْهُ، وَلَيَسْمَعَنَّ نَاسٌ بِرِخَصٍ مِنْ أَسْعَارٍ وَرِيْفٍ فَيَتَّبِعُوْنَهُ، وَالْمَدِيْنَةُ خَيْرٌ لَهُمْ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ».

ژباړه: څوک چې مدينه بې رغبته پرېږدي، نو الله تعالی به له دوی څخه ښه خلک استوګن کړي، خلک چې د کوم ځای په اړه واوري، چې

---

۱- ابن ماجه: ۳۰۸، رقم: ۴۰۷۷.

هلته ارزاني ده او خواره اوپه دېرې دي، نو هلته به ځي، په داسې حال کې چې مدينه به د دوی لپاره غوره وي، کاش! که دوی پوهېدای»[۱]

**۵- د سرو زرو غر به راښکاره شي:**

امام مسلم رحمه الله له ابي ابن كعب رضي الله عنه څخه روايت نقل كړی دی:

عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُوْلُ: " يُوْشِكُ الْفُرَاتُ أَنْ يَحْسِرَ عَنْ جَبَلٍ مِنْ ذَهَبٍ، فَإِذَا سَمِعَ بِهِ النَّاسُ سَارُوْا إِلَيْهِ، فَيَقُوْلُ مَنْ عِنْدَهُ: لَئِنْ تَرَكْنَا النَّاسَ يَأْخُذُوْنَ مِنْهُ لَيُذْهَبَنَّ بِهِ كُلِّهِ، قَالَ: فَيَقْتَتِلُوْنَ عَلَيْهِ، فَيُقْتَلُ مِنْ كُلِّ مِائَةٍ تِسْعَةٌ وَتِسْعُوْنَ.[۲]

ژباړه: له ابي ابن كعب رضي الله عنه څخه روايت دی هغه وايي، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واورېدل، چې فرمايل يې: «ډېر ژر به له فرات سيند څخه د سرو زرو غر راښكاره شي. كله چې خلك د دې خبر واوري، نو د ترلاسه كولو په مقصد به راووځي. كله چې دا حالت ووينې، نو د هغې ځای اوسېدونكو ته به ووايي: (كه دا مو په خپل ځای پرېښوده، نو ټول خلك به يې سره زر يوسي). (د همدې منع كولو په صورت كې به) د دوی تر منځ جګړه ونښلي، چې په دوی كې به نهه نوي فيصده خلك ووژل شي».

په ابن ماجه كې له ثوبان رضي الله عنه څخه روايت شوی:

---

۱- مستدرك للحاكم: ۴/ ۵۰۱، رقم: ۸۴۰.

۲- مسلم: ۲/ ۳۹۱، رقم: ۲۹۸۵.

عَنْ ثَوْبَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَقْتَتِلُ عِنْدَ كَنْزِكُمْ ثَلاَثَةٌ، كُلُّهُمْ ابْنُ خَلِيْفَةٍ، ثُمَّ لاَ يَصِيْرُ إِلَى وَاحِدٍ مِنْهُمْ، ثُمَّ تَطْلُعُ الرَّايَاتُ السُّوْدُ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ، فَيَقْتُلُوْنَكُمْ قَتْلاً لَمْ يُقْتَلْهُ قَوْمٌ» - ثُمَّ ذَكَرَ شَيْئًا لاَ أَحْفَظُهُ فَقَالَ - فَإِذَا رَأَيْتُمُوْهُ فَبَايِعُوْهُ وَلَوْ حَبْوًا عَلَى الثَّلْجِ، فَإِنَّهُ خَلِيْفَةُ اللهِ الْمَهْدِيُّ ". [۱]

ژباړه: له ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ((ستاسو له خزانې سره به درې کسان جنګ وکړي او په دې درېواړو کې به هر يو د خليفه زوی (شهزاده) وي، خو هغه خزانه به هېڅا ته هم په لاس ورنه شي. بيا به د ختيځ له لوري د تورو بيرغونو خاوندان راښکاره شي او دوی به له تاسو سره داسې سخت جنګ وکړي، چې له دې مخکې به هېڅ قوم له تاسو سره دومره سخته جګړه نه وي کړې)). ثوبان رضي الله عنه وايي: چې بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم يوه خبره وکړه، خو زما په ذهن کې پاتې نه شوه، بيا يې وفرمايل: (کله چې تاسو هغه ووينئ، نو سمدستي ورسره بيعت وکړئ، ځکه چې په هغوی کې به خليفه مهدي وي) )).

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله وايي: ((که په پورته ذکر شوي حديث کې له خزانې څخه هغه خزانه مراد وي، چې د سرو زرو غر والا

---

۱- ابن ماجه، باب خروج المهدي: ۳۱۰.

په حديث کې راغلې ده، نو دا د دې خبرې دليل دی، چې دا پېښې به مهدي ته په نږدې وخت کې راڅرګندې شي». (۱)

## ۶- د حج په ورځو کې د وينو توئېدل:

له دې روايت څخه داسې معلومېږي، چې په منی کې به د حج په ورځو کې ډېره وينه توی شي، تر دې چې جمره عقبه به پرې سره شي:

عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيْهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فِيْ ذِي الْقَعْدَةِ تَحَازُبُ الْقَبَائِلِ، وَعَامَئِذٍ يُنْهَبُ الْحَاجُّ، فَتَكُوْنُ مَلْحَمَةٌ بِمِنًى، فَيُكْثَرُ فِيْهَا الْقَتْلَى، وَتَسْفِكُ فِيْهَا الدِّمَاءُ، حَتَّى تَسِيْلَ دِمَاؤُهُمْ عَلَى عَقَبَةِ الْجَمْرَةِ». (۲)

ژباړه: د ذي قعدې په مياشت کې به قومونه ډلې ډلې شي، په دې کال به حاجيان ولوټل شي او په منی کې به داسې سخت جنګ ونښلي، چې د وژل شوو کسانو شمېر به ډېر زيات وي، وينې به يې دومره ډېرې وبهېږي، چې تر جمره عقبه پورې به ورسېږي.

---

۱- فتح الباري: ۱۳/ ۸۱.

۲- الفتن لنعيم بن حماد: ۲۶۷، رقم: ۹۹۳.

# څلورمه برخه

## مهدي د راوتلو څو مشهورې علامې او د هغې تحقيق

# څلورم فصل

## د مهدي د راوتلو څو مشهورې علامې او د هغې تحقيق

د مهدي په اړه په كتابونو كې مستند او غيرمستند دواړه ډوله علامې موندل كېږي. څو داسې علامې ذكر كوو، چې يو عادي انسان پرې هم په اسانۍ سره پوهېږي او د مهدي رضي الله عنه تعين پرې كولی شي. موږ دلته يوازې دوه علامې ذكر كوو:

**۱- له سپوږمۍ سره د يوې نښې راختل:**

عَنْ عَلِيِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ قَالَ: لَايَخْرُجُ الْمِهْدِيُّ حَتَّى تَطْلُعَ مَعَ الشَّمْسِ آيَةٌ.[۱]

ژباړه: له علي بن عبدالله بن عباس (رضي الله عنهم) څخه روايت دی، چې مهدي به تر هغې پورې راښكاره نه شي، څو پورې چې له لمر سره يوه نښه راختلې نه وي.

د مفتي نظام الدين شامزي رحمه الله په وينا دا روايت د منلو وړ دی.[۲]

د نعيم بن حماد په (كتاب الفتن) كې هم داسې روايت شته، چې د سند له پلوه حسن درجې ته رسېدلی دی، وايي:

۱- مصنف عبدالرزاق: ۱۱/ ۳۷۳، رقم: ۲۰۷۷۵.

۲- عقيده ظهور مهدي: ۵۳.

عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: «لَا يَخْرُجُ الْمَهْدِيُّ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ آيَةً». [۱]

ژباړه: له علي بن عبدالله بن عباس (رضي الله عنهم) څخه روايت دی، مهدي به تر هغې پورې راښكاره نه شي، څو چې لمر د يوې نښې په شكل راختلی نه وي.

**۲- خراسان او تور بيرغونه:**

دا چې له خراسان څخه به تور بيرغونه راپورته كېږي، په دې اړه ډېر روايتونه شته، چې څو روايتونه به يې د اختصار په توګه ذكر كړو:

(۱) عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِيْ طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: «إِذَا خَرَجَ خَيْلُ السُّفْيَانِيِّ إِلَى الْكُوْفَةِ، بَعَثَ فِي طَلَبِ أَهْلِ خُرَاسَانَ، وَيَخْرُجُ أَهْلُ خُرَاسَانَ فِي طَلَبِ الْمَهْدِيِّ، فَيَلْتَقِي هُوَ وَالْهَاشِمِيُّ بِرَايَاتٍ سُوْدٍ عَلَى مُقَدِّمَتِهِ شُعَيْبُ بْنُ صَالِحٍ، فَيَلْتَقِي هُوَ وَأَصْحَابُ السُّفْيَانِيِّ بِبَابِ إِصْطَخْرَ، فَتَكُوْنُ بَيْنَهُمْ مَلْحَمَةٌ عَظِيْمَةٌ، فَتَظْهَرُ الرَّايَاتُ السُّوْدُ، وَتَهْرُبُ خَيْلُ السُّفْيَانِيِّ، فَعِنْدَ ذَلِكَ يَتَمَنَّى النَّاسُ الْمَهْدِيَّ وَيَطْلُبُوْنَهُ». [۲]

ژباړه: له علي بن ابوطالب رضي الله عنه څخه روايت دی، چې د سفياني لښكر به كوفې ته لاړ شي، نو هغه به د خراسانيانو په لوري

---

۱- الفتن لنعيم بن حماد: ۲۶۰، رقم الحديث: ۹۵۹.

۲- منتخب كنز العمال على هامش مسند احمد: ۶/ ۳۲، والفتن لنعيم: ۲۱۸، رقم: ۸۶۸.

لښکر ولېږي او خراسانيان به د مهدي په لوري لاړ شي، چې هغوی به له تورو بيرغونو سره يو ځای شي. د دې لښکر په مخکينۍ برخه کې به شعيب بن صالح وي. هلته به د هاشمي او سفياني لښکرو تر منځ نښته رامنځ ته شي، چې په پای کې به د هاشمي لښکر غلبه ترلاسه کړي او د سفياني لښکر به تېښتې ته اړ شي. په دې وخت کې به خلک د مهدي په تمه وي او هغه به لټوي».

که څه هم چې دا روايت موقوف دی، خو بيا هم د حکم په اعتبار مرفوع دی، ځکه چې دا الفاظ په نورو مرفوع احاديثو کې هم راغلي دي او د محدثينو او اصوليينو په نزد دا مشهور قاعده ده، چې کله د صحابي قول له قياس څخه پورته درجه کې شي، نو هغه د مرفوع خبر په حکم کې راځي.

(۲) إذا رأيتم الرايات السود قد جاءت من قبل خراسان فأتوها، فإن فيها خليفة الله المهدي.[۱]

ژباړه: کله چې د خراسان له لوري تور بيرغونه ووينئ، نو هغې طرف ته ورشئ، ځکه چې په دې کې به د الله تعالی خليفه مهدي وي.

دا روايت د اعتبار وړ دی.[۲]

(۳) عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَقْتَتِلُ عِنْدَ كَنْزِكُمْ ثَلَاثَةٌ، كُلُّهُمُ ابْنُ خَلِيْفَةٍ، ثُمَّ لَا يَصِيْرُ إِلَى وَاحِدٍ مِنْهُمْ، ثُمَّ تَطْلُعُ الرَّايَاتُ السُّوْدُ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ، فَيَقْتُلُوْنَكُمْ قَتْلًا لَمْ يُقْتَلْهُ

---

۱- منتخب کنز العمال: ۶/ ۲۹.

۲- عقيده ظهور مهدي: ۶۵.

قَوْمٌ» - ثُمَّ ذَكَرَ شَيْئًا لَا أَحْفَظُهُ فَقَالَ - فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُ فَبَايِعُوهُ وَلَوْ حَبْوًا عَلَى الثَّلْجِ، فَإِنَّهُ خَلِيفَةُ اللهِ الْمَهْدِيُّ ".[۱]

ژباړه: له ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دی هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: «ستاسو خزانې سره به درې کسان وجنګېږي، چې په دې کې به هر يو تن د خليفه زوی وي، خو هغه خزانه به په دې درېواړو کې هېڅوک ونه مومي. بيا به د ختيځ له لوري تور بيرغونه راڅرګند شي، هغوی به له تاسو سره داسې جګړه وکړي، چې له دې مخکې به درسره هېڅ يو قوم داسې جګړه نه وي کړې». بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم څه وفرمايل، چې زما «راوي» په ذهن کې پاتې نه شو. بيا يې وفرمايل: «کله چې تاسو هغوی ووينئ، نو له هغوی سره بيعت وکړئ، که د واورې پر رغړېدو هم وي، ځکه چې په هغه کې به د الله تعالى خليفه مهدي وي».

دا روايت هم د منلو او اعتبار وړ دی، ځکه چې سنن ابن ماجه روايت کړی او سنن ابن ماجه په موضوعاتو کې نه دی شمېرل شوی. همدارنګه د سنن ابي داود په کتاب المهدي او په مستدرک للحاکم کې د دې متابع روايتونه شته. سربېره پر دې د نورو صحابه کرامو له روايتونو هم ددې روايت تائيد کېږي.

علامه سندي رحمه الله وايي: «دا روايت ابو الحسن بن سفيان رحمه الله په خپل مسند او ابو نُعَيم په کتاب المهدي کې د ابراهيم بن

---

۱- سنن ابن ماجه: ۳۱۰.

سوُيد شامي رحمه الله له لارې ذكر كړې دى، چې د سند له پلوه صحيح روايت دى، همدارنګه ټول راويان يې ثقه دي.[۱]

(۴) عن ثوبان رضي الله عنه، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: إذا رأيتم الرايات السود قد جاءت من قبل خراسان فأتوها، فإن فيها خليفة الله المهدي.[۲]

ژباړه: له ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دى هغه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:

«كله چې مو د خراسان له لورې تور بيرغونه وليدل، نو هغې طرف ته ورشئ، ځكه چې په هغه كې به د الله تعالى خليفه مهدي وي».

په دې لړ كې ابو داود يو روايت نقل كړى دى، چې د خراسان د يو پاچا له مهدي سره مرسته په كې ذكر شوې ده.

عَنْ هِلَالِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَقُولُ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ وَرَاءِ النَّهْرِ يُقَالُ لَهُ الْحَارِثُ بْنُ حَرَّاثٍ، عَلَى مُقَدِّمَتِهِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ: مَنْصُورٌ، يُوَطِّئُ - أَوْ يُمَكِّنُ - لِآلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا مَكَّنَتْ قُرَيْشٌ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَجَبَ عَلَى كُلِّ مُؤْمِنٍ نَصْرُهُ " أَوْ قَالَ: «إِجَابَتُهُ».[۳]

---

۱- ترجمان السنة: ۳/ ۳۹۰.

۲- رواه احمد: ۵/ ۱۷۷، رقم: ۲۲۷۶۳.

۳- ابو داود: ۲/ ۵۸۹، رقم: ۴۲۹۰.

ژباړه: له هلال بن عمرو رحمه الله روایت دی هغه وایي، چې ما له علي رضي الله عنه څخه واورېده، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ((له ماورالنهر څخه به یو شخص راووځي، چې الحارث حراث (الحارث بن حراث) نومېږي، د هغه د لښکر په سر کې به یو شخص وي، چې منصور به بلل کېږي، هغه به د محمد اولادې ته داسې تسلط یا پناه ورکړي، څنګه چې قریشو رسول الله [صلی الله علیه وسلم] ته ورکړې وه. په هر مومن واجب دي، چې له هغه سره مرسته وکړي یا یې دا وفرمایل: د هغه حکم منل پرې واجب دي)).

په دې لړ کې شاه رفیع الدین رحمه الله لیکي : ((کله چې د مهدي د راڅرګندېدو اوازه په اسلامي نړۍ کې خپره شي، نو له خراسان څخه به یو تن د لښکر په مخکینۍ برخه کې به یې د منصور په نوم مشر وي، له دېر لوی پوځ سره به د مهدي مرستې ته روان شي، چې په لاره کې به دېر عیسویان او بې دینه خلک ووژني)).[۱]

---

۱- علامات قیامت: ۱۱.

## د مراجعو فهرست

| ګڼه | د کتاب نوم |
|---|---|
| ۱ | القران الكريم |
| ۲ | تفسير ابن كثير |
| ۳ | تفسير الطبري |
| ۴ | هدايت القرآن |
| ۵ | الصحاح الستة |
| ۶ | مسند احمد |
| ۷ | مسند بزار |
| ۸ | مصنف عبدالرزاق |
| ۹ | منصف ابن ابي شيبة |
| ۱۰ | سنن الدارقطني |
| ۱۱ | مسند الشاميين |
| ۱۲ | مستدرك للحاكم |
| ۱۳ | السنن للداني |
| ۱۴ | دلائل النبوة |
| ۱۵ | فتح البآري |
| ۱۶ | عمدة القاري |
| ۱۷ | فيض البآري |
| ۱۸ | الجامع الكبير |
| ۱۹ | فيض القدير |
| ۲۰ | فتح الملهم |
| ۲۱ | تكلملة فتح الملهم |

| ٢٢ | اكمال اكمال المعلم |
|---|---|
| ٢٣ | مكمل الاكمال |
| ٢٤ | الكوكب الدري |
| ٢٥ | تحفة الاحوذي |
| ٢٦ | العرف الشذي |
| ٢٧ | العون المعبود |
| ٢٨ | بذل المجهود |
| ٢٩ | مصباح الزجاجة |
| ٣٠ | اشعة اللمعات |
| ٣١ | مرقاة المفاتيح |
| ٣٢ | كنز العمال |
| ٣٣ | منتخب كنز العمال |
| ٣٤ | العرف الوردي في اخبار المهدي |
| ٣٥ | عارضة الاحوذي |
| ٣٦ | البداية والنهاية |
| ٣٧ | السعاية |
| ٣٨ | المغنى للذهبي |
| ٣٩ | الفتن لنعيم بن حماد |
| ٤٠ | تهذيب التهذيب |
| ٤١ | التذكرة للقرطبي |
| ٤٢ | التاريخ لابن عساكر |
| ٤٣ | الاحاديث الضعيفة للشوكاني |
| ٤٤ | سلسلة الاحاديث الضعيفة |

| ۴۵ | الكامل في ضعفاء الرجال لابن عدي |
|---|---|
| ۴٦ | نخبة اللالي شرح بدء الامالي |
| ۴٧ | المنار المنيف (ابن القيم) |
| ۴٨ | ميزان الاعتدال |
| ۴٩ | فتاوى محموديه |
| ۵٠ | فتاوى رحيميه |
| ۵١ | خير الفتاوى |
| ۵٢ | الحاوي للفتاوى |
| ۵٣ | نوادر الفقه |
| ۵۴ | تحفه خلافت از مولانا عبدالشكور لكهنوي |
| ۵۵ | تاريخ الخلفاء |
| ۵٦ | معارف الحديث |
| ۵٧ | مجمع بحار الانوار |
| ۵٨ | ترجمان السنة |
| ۵٩ | المهدي والمسيح (مفتي يوسف لدهيانوي) |
| ٦٠ | لسان الميزان |
| ٦١ | الاشاعة لاشراط الساعة |
| ٦٢ | شرح الفقه الاكبر |
| ٦٣ | شرح عقيدة السفاريني |
| ٦۴ | النبراس |
| ٦۵ | عقيده ظهور مهدي |
| ٦٦ | ارواح ثلثة |
| ٦٧ | امام مهدي شخصيت وحقيقت |

| | |
|---|---|
| ۶۸ | امام مهدي (مولانا ضياء الرحمن فاروقي) |
| ۶۹ | رحمة الله الواسعة |
| ۷۰ | ازالة الخفاء |
| ۷۱ | كفاية المفتي |
| ۷۲ | نزول عيسىٰ ظهور مسيح (مولانا ادريس كاندهلوي) |
| ۷۳ | عقايد اسلام (ابو محمد عبدالحق حقاني) |
| ۷۴ | كتاب الفتن واشراط الساعة (علامه داني) |
| ۷۵ | علامات قيامت (مفتي رفيع عثماني) |
| ۷۶ | علامات قيامت (شاه رفيع الدين دهلوي) |
| ۷۷ | جواهر الايمان |
| ۷۸ | جواهر الفقه |
| ۷۹ | عقايد اسلام (محمد ادريس كاندهلوي) |
| ۸۰ | فقهي جواهر |
| ۸۱ | ملفوظات فقيه الامت |
| ۸۲ | النهاية (ابن كثير) |
| ۸۳ | خطبات حكيم الاسلام |
| ۸۴ | ستاسو ستونزې او د هغې حل |
| ۸۵ | المهدي لعادل الذكي |